# خوشال په خپل ايډيال

(د ماسټرۍ دورې ليکنې)

محمد اسمعيل يون

۱۳۸۷ل کال

# بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| کتاب نوم: | خوشال په خپل ایډیال |
| لیکوال: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپکال: | ۱۳۸۷ل |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| د لیـــکـــوال | |
| پرلـه پسـې نومره: | (۲۲ ) |
| د خــپـرنــدوی | |
| پرله پسـې نومره: | (۲۲ ) |
| کـــــــمپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# نیولیک

# پر دې اثر څو خبرې

زموږ په ځوانو فرهنګیانو او د کابل پوهنتون په استادانو کې ښاغلی یون داسې ځوان دی، چې فرهنګ ته خدمت یې خپل اصلي کار بللی دی. دی لا د پوهنتون محصل و چې پر شاعرۍ سربېره یې لیکنې کولې، کتابونه یې چاپول او په فرهنګي چارو کې یې برخه درلوده. زمانبه یاد دي چې کله په **۱۳۶۹**هـ ش کال په کابل کې د یو شمېر خواخوږو فرهنګیانو له خوا د خوشال فرهنګي ټولنه جوړه شوه، ښاغلی یون د خپل استعداد او همت په وجه د خوشال فرهنګي ټولنې د رهبري هئیت کې د یوه ځوان غړي په توګه خپل موقف تثبیت کړ.

ښاغلي یون ډېر کتابونه او ډېرې مقالې لیکلې دي، د ځینو خپرونو چلوونکی پاتې شوی دی، لنډه دا چې د خپل عمر زیاته برخه یې د فرهنګ خدمت کړی دی. دده ډېر ښه عادت دی چې خپلې لیکنې په خپل لاس چاپوي او خپلو خلکو ته یې وړاندې کوي، ستاسو په لاسو کې دا کتاب د ښاغلي یون د ماسترۍ په دورې پورې مربوطې هغه مقالې دي، چې یې د بېلابېلو مضامینو د کورني کار په توګه یې تهیه کړي دي.

ده اوس دا مقالې راټولې کړي او د دې کتاب له لارې یې خپلو هېوادوالو ته وړاندې کوي. ښاغلی یون دې خیر یوسي چې دا مقالې یې ساتلې دي، که نه وي د کورني کار لپاره لیکلې مقالې څوک نه

ساتي، یا دا چې په لیکلو یې محضې وار تېر کړی وي او کله هم دا وړ لیکنې د مربوطه مضمون له استاد سره پاتې‌ږي.

ښاغلی یون، لکه خپلې نورې مقالې پر دې مقالو هم زیار ایستلی دی او د مجموعې په توګه یې د چاپ لپاره بیا کتلې دي او دا دی اوس چاپېږي، چې زموږ نور فرهنګیان او فرهنګي کړی، ترې استفاده وکړي.

زه ښاغلي یون ته د دې مجموعې د تهیې او چاپ مبارکي وایم او فرهنګ ته د خدمت په لاره کې یې زیات بری غواړم.

په درناوي

سرمحقق زلمی هېوادمل

سریزه:

# د ماسټرۍ دورې دا لیکنې

تر یوه اوږد ځنډ وروسته پر (۱۳۸۵) لمریز کال د نباغلي سرمحقق زلمي هېوادمل، استاد مکمل الکوزي او یو شمېر نورو خواخوږو استادانو په هلو ځلو په کابل پوهنتون ژبو او ادبیاتو پوهنځي پښتو اودري څانګو کې یو ځل بیا د ماسټرۍ کورسونه پیل شول. د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي او د یو شمېر نورو همسلکو پوهنځیو ځینو فارغانو په دې پروګرام کې ځانونه شامل کړل. موږ د ماسترۍ ددې دورې لومړي فارغان وو، دوه کاله مو په منظم ډول د ماسټرۍ دوره تعقیب کړه او تر څلورو سمسټرونو منظم تدریس وروسته دا پړاو سرته ورسېد او شپږ میاشتې موده نوره د تېزس لیکلو لپاره ځانګړې شوه، په مجموعي ډول دې دورې دوه نیم کاله دوام وکړ. دماسټرۍ دورې د تدریس په بهیر کې قدرمنو استادانو پر تدریس سر بېره د بېلابېلو ادبي موضوعګانو د څېړنې دندې هم را وسپارلې، چې ځینې یې د لنډو ارزونو، ځینو یې د څېړنیزو او ځینو نورو یې د تحلیلي لیکنو غوښتنه کوله. ما هم په دې بهیر کې د بېلابېلو راسپارل شویو موضوعګانو په هکله لیکنې وکړې او اړوند

استاد ته مې د کتنې لپاره وروسپارلې ، په دې بهیر کې ځینې لیکنې داسې وې، چې په لاس لیکل شوې وې، یوازې یوه کاپي وه، چې هغه اړوند استاد ته سپارل کېدله، په دې ترڅ کې یو څو داسې لیکنې وې چې کاپي کولو ته یې وخت پیدا نه شو ، خو ځینې لیکنې چې په کمپیوټر لیکل شوې وې، یوه کاپي ترې استاد ته ورکړل شوه او اصل متن یې هم خوندي پاتې شو ، سره له دې چې استادانو تر کتنې وروسته موږ ته بېرته خپلې لیکنې راکولې، خو په دې بهیر کې ځینې لیکنې بېرته زموږ له لاسه وتي او ورکې شوي دي. په دې شپو ورځو کې چې زه د خپلو تېرو کارونو پر اوډون او بیا کتنه بوخت یم، نو د ماسترۍ دورې پر لیکنو مې هم سترګې ولګېدې.هغه لیکنې چې په کمپیوټر کې خوندي وې او ځینې یې په رسنیو کې هم چاپ شوې وې، هغه مې بیا له سره وکتلې او منظمې مې کړې، خو په دې ترڅ کې پنځه شپږ عنوانه داسې لیکنې وې، چې ما دماسترۍ دورې په بهیر کې پر بېلابېلو مسایلو لیکلې وې، خو د هغو په تر لاسه کولو بریالی نه شوم، سره له دې چې ما دخپلو لیکنو د خوندیتوب لپاره له پخوا نه پلان درلود ، خو دا لیکنې چې مې هر څومره په خپل کتابتون کې ولټولې پیدا مې نه کړې، سره له دې چې ددې لیکنو د ځینو کاپۍ مې خوندي کړې هم وې،لکه لیک د خوشال له نظره، د

پښتو ګرامر په اړه يوه ليکنه، د استاد الفت د يوه هنري نثر ارزونه او ځينې نورې ليکنې. له دې پورته خبرو څخه مې هدف دا و، زموږ ځوان ليکوال بايد هڅه وکړي، چې تر دې وروسته د خپلو علمي، څېړنيزو او نورو هغو ليکنو چې پر بيا چاپ او خونديتوب ارزي، ضرور د هغو يوه يوه يا دوه کاپۍ له ځان سره خوندي کړي او که په رسنيو کې چاپ شوي هم وي، بايد چاپي او ناچاپي يوه يادوه کاپۍ ولري، کله که دی او يا هم نور څوک وغواړي دده د بېلابېلو ليکنو ټولګه يا ټولګې چاپ کړي، نو له ستونزو او کړاوونو سره به مخامخ نه شي. عمر ډېر لنډ، تنګ او مصروف دی، زموږ راتلونکی نسل به تر موږ څو ځله زيات بوخت وي او وخت به هغوی ته رښتيا هم د سرو زرو ارزښت ولري، نو که زموږ هر ليکوال خپله ټوله پانګه خوندي نه کړي، نو له راتلونکي پښت څخه دې هم دا هيله نه کوي او نه دې راتلونکي پښت، د ماضي پر کارونو مصروفوي. پښتنو ته بلا ډېر کار پروت دی، که زموږ راتلونکی نسل پر ماضي مصروف شي، نو د هغوی خپل کارونه به څوک سرته ورسوي؟ زه د يوه شعوري افغان په توګه نه غواړم د خپل کړي کار بار راتلونکي نسل ته پرېږدم، څه مې

کړي؟ ښه دي که خراب؟ نيمګړي دي که پوره؟ کره دي او که

ناکره؟ خپله یې باید راټول کړم او د خپل کار ثمر په خپله راتلونکي پښت ته وړاندې کړم، که زما د کار او نظر له یوې برخې هم زما خپل هېواد او هېوادوالو ته ګټه ورسي، نو دا به زما لپاره د ژوند په پاتې ورځو شپو کې د روحي ارامۍ سبب شي او که تر ژوندانه وروسته راته د خپل ملت افراد د دعا لاسونه پورته کړي، نو لوی څښتن به مې پر ګناهونو پرده وغوړوي او د ابدي نېکمرغۍ لاره به راته پرانیزي. دالیکنې زما دماسترۍ دورې د هغو لیکنو یوه ټولګه ده، چې د تدریس پر مهال دکورنیو دندو په توګه مورږ ته استادانو راسپارلې وې. پوره باور دی چې که د ماسترۍ دا دوره نه وای او یا هم د استادانو د زیار،زحمت او سپارښتنو او غوښتنو ټینګار نه وای، نو پوره یقین دی چې نه به دا لیکنې وې او نه به دا ټولګه. نو دلته ضروري ګڼم چې له قدرمنو استادانو: سرمحقق زلمي هېوادمل، پوهاند ډاکټر زېورالدین زېور، پوهنواله ډاکټره زرغونه زیور رښتین، استاد حبیب الله جاج پښتونزوی، قدرمن استاد اورمړ، استاد سعدالدین شپون، استاد اڅک، استاد اسدالله غضنفر، هندي استاد شاستری محمد حنیف اونورو هغو قدرمنو استادانو چې په مستقیم او نامستقم ډول یې زه ددې لیکنو د لیکنې جوګه کړی یم، مننه وکړم او کور ودانی ورته ووایم. د ماسترۍ دورې له نورو

فارغانو څخه مې هم د مننې تر څنگ دا هیله ده چې د خپلې دې دورې لیکنې سره منظمې او خوندي کړي، په دې ډول به مو د پښتو ادب د خدمت په لار کې یو گام پورته کړی وي.

دا اثر مې ځکه د ((خوشال په خپل ایډیال)) په نامه ونوموه چې اکثره لیکنې په کې د خوشال بابا په باب دي، بل کوم معیارونه چې بابا د خپل یو ایډیال شخص (سړي) لپاره ټاکلي، تر ډېره بریده دی په خپله پر همغو معیارونو برابر او پوره دی، یانې د خوشال ایډیال خپله خوشال دی او کېدی شي محمد گل خان مومند او ځینې نور پښتانه مشران هم د خوشال د ایډیال شخص معیارونه پوره کړي.

خپلې ملي ژبې، ملي ادب او خپل ملت ته د ډېرو خدمتونو په هیله

په درنښت

محمد اسمعیل یون

ارگ، د جمهوري ریاست ودانۍ، کابل- افغانستان

۱۳۸۷ل کال د مرغومي ۱۲مه نېټه

# د خوشال يو تصوفي شعر

خوشال بابا يو اړخيز شخصيت دی، خو د خوشال څو اړخيز شخصيت لا په هر اړخيز ډول څېړل شوی او شنل شوی نه دی. تراوسه پورې د بېلابېلو کورنيو او بهرنيو خوشال پېژندونکو له خوا د خوشال په باب په لسګونو مستقل او په زرګونو عنوانه متفرقه ليکنې چاپ شوي دي، خو بيا هم د خوشال شخصيت نورې څېړنې او شننې ته اړتيا لري. خوشال يو شاعر و، ليکوال و، تاريخپوه او تبر پوه و، طبيب او رنځپوه و، جګړن او تورزن و، فلسفي و، ښکاري و، اروا پوه و، سياستوال او سياستپوه و او د کامل مومند په اصطلاح "لنډه دا چې څه نه و چې دی نه و" يانې هر څه و، خو تراوسه پورې لا د خوشال د شخصيت ډېر اړخونه ناڅېړلي او ناشنلي پاتې دي. د خوشال د شخصيت له دې ناڅېړلو اړخونو څخه يو هم د خوشال د شخصيت (تصوفي) اړخ دی. که څه هم يو شمېر پخو ليکوالو لکه دوست محمد خان کامل مومند، سيد رسول رسا، امير حمزه شينواري، سرمحقق زلمي هېوادمل او محمد آصف صميم د خوشال د شخصيت دې اړخ ته هم نغوتې او اشارې کړي، خو لکه څنګه چې د خوشال د شخصيت د رزم او بزم خوا څېړل شوې، دا خوا هغومره نه ده څېړل شوې. حمزه بابا د خوشال

بابا د یوه تصوفي شعر پر یوه بیت: ((په هر څه کې ننداره د هغه مخ کړم ـــ چې له ډېرې پیـدایی ناپدید شو)) ، یوه ځانګړې رساله لیکلې ده او دا شعر یې د وحدة الوجود او وحدة الشهود د فلسفې په رڼا کې څېړلی دی. خوشال بابا او حمزه بابا په تصوف کې د یوې ځانګړې طریقې خاوندان وو، نو ځکه خو حمزه بابا ته د خوشال دې شعر د مانا له پلوه ډېر ارزښت درلود، نو ځکه یې دا بیت په هر اړخیز ډول څېړلی دی. تصوف او عرفان په حقیقت کې د خوشال د شاعرۍ یوه ځانګړې او اساسي برخه ده، چې د هغې د بېلابېلو خواوو له څېړنې او شننې څخه موږ ته یو متقي، زاهد، پرهېزګار او صوفي خوشال راڅرګندېږي. د خوشال زیاتره تصوفي او عرفاني افکار د هغه رباعیاتو او څلوریزو کې خوندي شوي او بیا دې عرفاني رڼا غزلو، قصیدو او د خوشال نورو شعرونو ته هم لاره کړې ده. د خوشال په نږدې (زرو غزلو) کې داسې غزلې هم شته، چې ټولې تصوفي او عرفاني رنګ لري او داسې غزلې هم شته، چې یو یا څو بیتونه یې تصوفي رنګ او خوند لري او نور بیتونه یې د ژوندانه نورو خواو ته وقف شوي دي. همدا عملیه پر ځینو قصیدو او د شعر پر نورو فورمونو هم تطبیقېږي. د غزل یوه ځانګړنه همدا ده، چې د یو ټولیز او کلي ارتباط د ساتنې او پالنې ترڅنګ یې هر بیت یوه خپلواکه مانا هم لري. د خوشال بابا اکثره غزلې له

همدې امتیاز څخه پوره برخمنې دي. که څوک غواړي د خوشال بابا د تصوفي او عرفاني افکارو څېړنه وکړي، نو یوه کتاب نه، بلکې د کتابونو لیکنې ته اړتیا ده او که څوک غواړي د خوشال له کلیاتو څخه د هغه د تصوفي افکارو پر بنسټ د هغه شعرونه رابېل کړي، نو بیا به هم پام وړ شعرونه شي او که بیا یوازې د خوشال دې تصوفي افکارو ته ښه ځیر شي، نو داسې فکر به وکړي، چې خوشال ګڼې له تصوف پرته هډو بل کار نه دی کړی. دغسې که موږ د خوشال د شخصیت هر اړخ مطالعه کوو، نو له یوه بېل او ځانګړي خوشال سره به مخامخ شو. دلته به د خوشال د تصوفي افکارو د ځلا په خاطر د خوشال هغه غزل راوړو، چې دده کلیات پرې پیلېږي او پوره تصوفي اوعرفاني مانا او رنګ لري:

صورتګر چې ښه صورت په دېوال ساز کا
کل عالم یې په صفت زبان دراز کا
د هغه نقاش په صنع نظر نه کا
چې له څه څاخکي نه دا نقش و طراز کا
سترګې، وروځې، پوزه نور کېږدي په مخ کې
غاښ و شونډې، ژبه، خوله سره پر داز کا
یو سر بل سر په سر جوړ کا دوه غوږونه
چې په دواړو اورېدنه د اواز کا

بند په بند د لاسو ګوتې وبله کېږدي
سر تر پایه درست صورت سره یو راز کا
که څوک زر کتابه وکښي له دې بابه
که په کښل شي زر به نور پسې اغاز کا
هر و ښته چې په صورت باندې لیده شي
که پرې ځیر شي د شناخت ور به درته واز کا
خاص بنده د خدای هغه ګڼه خوشاله !
چې د ځان په معرفت یې سرفراز کا.

بابا ددې غزل په لومړي بیت کې د لوی خالق د قدرت علایمو ته اشاره کوي او وايي یو عادي انځورګر یا رسام، چې یوه تابلو یا انځور رسم کړي او هغه بیا چېرته په کوم دېوال یا نندارتون کې کېږدي او خلک یې ننداري ته راشي، نو ټول یې توصیف او ستاینه کوي. د رسام یو ښکلی انځور په ډېرو لفظي ستاینو او مالي قیمت ارزوي، نو کله چې د یو عادي انځور خالق یا انځورګر په دومره ستاینو او قیمت ارزي، هغه لوی ذات چې ددې انځور، د انځورګر خالق او انځورګر دی، هغه به په څومره ستاینو او نمانځنو وارزي؟ خوشال بابا وايي: خلک د هغه

صانع، صفت او تخلیق ته متوجه نه دي، چې له یوه ځاځکي څخه یې په څه نقش او طراز باندې انسان یا همدا انځورګر، چې یو عادي انځور یې جوړ کړی، تخلیق کړی دی. انځورګر له بېلابېلو رنګونو او نورو توکو څخه په ډېر زحمت او دقت ګټه پورته کوي او تر یوه کړاو وروسته یو انځور جوړوي، خو لوی څښتن تعالی په خپل حکمت له یوه ځاځکي څخه داسې یو انځور یا انځورګر جوړوي، چې هغه بیا د نورو انځورونو د جوړونې وړتیا لري. په داسې حال کې چې د عادي انځورګر، انځور د بل انځور د جوړونې قابلیت نه لري او یو جامد موجود ګڼل کېږي، خو د لوی خدای(ج) ذات د انځور جوړونې قابلیت بیا دا دی، چې په همدې یوه ځاځکي، خپل انځور ته سترګې، وروځې، پوزه، غاښ، شونډې، ژبه، خوله او نور سره پرداز کړي، چې په دې سره خپل انځور د خبرو، لیدو او ګرېدا وړ کړي، غوږونه ورته کېږدي، چې د اورېدو وړتیا پیدا کړي، لاسونه او پښې ورته ورکړي، چې د تحرک او کار قابلیت پیدا کړي. لنډه دا چې په دې یوه ځاځکي د خپل انځور ټوله ښکلا او ضرورتونه پوره کړي. خوشال بابا وايي: که د لوی خالق ددې انځور یا مخلوق د ښکلا او جوړښت په باب هر څومره بحث او خبرې اترې وشي، کتاب او کتابونه ولیکل شي او ان په زرګونو کتابونه، نو بیا به هم په دې انځور کې د لوی خدای(ج) د قدرت د

ټولو عجايبو تفصيل ورنه کړای شو. خوشال بابا د خدای(ج) ددې انځور يوازې يوه وښته ته اشاره کوي او وايي: که يوازې پر همدې يوه وښته تحقيق او پلټنه وشي، نو د خپل رب پېژندنې ور به درته ببرته کړي. د انسان په وجود کې د وښتو د شتوالي پر ضرورت او اهميت عادي وګړي نه پوهېږي، خو کله چې له طبيبانو پوښتنه وشي، نو بيا به سړی پر خپل بدن د وښتانو پر ګټې او ارزښت پوه شي. رنځپوهان يا طبيبان وايي: د انسان پر وجود چې هر څومره وښتان دي، هر وښته يو ځانګړی سوری لري، چې د انسان د بدن دننی او بهرنی دفاعي سستم تنظيموي، يانې د انسان د وجود اړينه هوا بدن ته داخلوي او کله چې پر انسان د ګرمۍ او نورو عواملو له امله فشا راځي او خوله توليدوي، دا خوله د همدې وښتانو له لارې له بدن څخه خارجېږي. په دې ډول وښتان د بدن د تبخير په چارو کې مهم رول ادا کوي. دغه راز د انسان د بويونې په سستم کې وښتان د هوا په پاکولو کې ډېره مرسته کوي. خوشال د يوه صوفي او طبيب په توګه د خدای د پېژندنې لپاره دا يو وښته د ساري په توګه يادوي او که همدا يوه وښته ته هم متوجه شو، نو د خدای د حکمت او قدرت پر رازونو به پوه شو. خوشال بابا هغه انسان نېکمرغه ګڼي، چې خدایج ورته ددې وس او توان ورکړی، چې د لوی خدای(ج) د قدرت په باب فکر وکړي، خو

خوشال د خدای د پېژندنې راز په دې کې ګڼي، چې انسان د خپل ځان په باب فکر وکړي، زه څوک يم، څنګه جوړ شوی يم؟ او چا جوړ کړی يم.؟ خوشال بابا وايي لکه څنګه چې يو (انځور) خپل (انځورګر) لري او پرته له هغه، انځور هډو جوړېدی نه شي، دغسې انسان (مخلوق) هم يو (خالق) لري، چې د هغه له قدرت او حکمت پرته دی اصلاً راتوکېدی نه شي، نو په دې خاطر چې موږ خپل خالق وپېژنو، د خپل ځان په باب بايد فکر وکړو او په ځان کې د لوی رب د قدرت او حکمت نښې نښانې کشف کړو. هغه نښې نښانې چې هره يوه يې د يو خاص هدف لپاره ګومارل شوې او مشخصه دنده ترسره کوي، نو کله چې موږ د لوی رب د قدرت په دې رازونو پوه شو، نو بيا چې د يو عادي انځور لپاره د يو عادي انځورګر ستاينه کوو، نو بيا خو لازمه ده، چې شپه او ورځ د هغه حقيقي او اصلي انځورګر (لوی رب) ستاينه وکړو، چې د (انسان) په شان انځور يا صنع يې رامنځته کړی دی او همدغه کسان بيا د خدای(ج) نېکمرغه کسان دي، چې پر همدې تفکر، نمانځنه او ستاينه بوخت وي.

# ((تاریخچه سبکهای اشعار پشتو ))

## د تحقیق د اصولو له نظره

((تاریخچه سبکهای اشعار پشتو )) (د پشګتو شعرونو د سبکونو تاریخچه) د پوهاند عبدالحی حبیبي یوه تحقیقي او تحلیلي رساله ده، چیګ د کابل کالنة د ۱۳۱۹ ل کال په (۱۷۱-۲۲۸ ) مخونو کیګ چاپ شویګ ده.

زه په خپله دیګ لیکنه کیګ، لومؤی غواؤم، ددیګ لیکنیګ غتګ محتویات معرفي کؤم او وبه ګکورو چیګ استاد خپله لیکنه پر خګو برخو ویګشلیګ او کوم غتګ مسایل ییګ په کیګ خګیګؤلي دي؟ تر هغه وروسته بیا غواؤم پر دیګ وغإیګإم چیګ د استاد ددیګ لیکنیګ ویګش د تحقیق د اوسنیو اصولو له مخیګ خګومره ژور دی او د تحقیق کوم اصول پریګ اوس د تطبیق وؤ دي؟ او یا هم د (۷۷ ) کلونو پخوانة لیکنه د تحقیق له اوسنیو معیارونو سره خګومره په تول تلليګ ده؟ مخکیګ تر دیګ چیګ زه خپلیګ خبریګ وکؤم، شګه به وي چیګ د اصلي لیکنیګ غتګ تګکي بیان کؤم او بیا د هغو په رنګا کیګ د تحقیق د اوسنیو اصولو فرضیه وؤاندیګ کؤم.

استاد حبیبي مخکیگ تر دیگ چیگ خپلیگ اصلي تجزییگ او تحلیل ته راشي، لومؤی ییگ د سبک د پیدا یشگت فلسفه بیان کؤیگ او په لنأیز سره ییگ د تاریخ په مختلفو دورو کیگ د شعر د شکلي او مانیز تغیر او تحول علتونه بیان کؤي او په خپله د سبک تعریف ییگ کؤی دی.

استاد په پیل یا سریزه کیگ د خپلیگ دیگ لیکنیگ علت په ککوته کوي او وایي: "په دیگ مضمون کیگ غواؤم د ملي ژبیگ د شعرونو پر سبکونو نظر واچوم او د سبکونو او د بیان د طرز له مخیگ د هغو تل ته ورننوزم، خگرنککه چیگ د پشگتو ادبیاتو تاریخ لکه خگرنککه چیگ لازمه ده تر اوسه پوریگ نه دی لیکل شوی، حگککه نو زما دا خگیگؤنه او پلتگنه بشپؤه نه ده او شاید نیمککؤتیا ویگ به ولري او لوستونکو ته به په کیگ لوؤیگ ژوریگ شگکاره شي، لکه خگنککه چیگ زما له لیکنیگ خگخه شگکاري او تر اوسه په دیگ باب خگیگؤنه نه ده شویگ او نه خگه لیکل شوي، حگککه نو که زما په دیگ لیکنه کیگ خگه سهویگ وي، هیله ده پوهان ییگ د حل لاره را په ککوته کؤي..." [1]

استاد حبیبي په خپله دیگ لیکنه کیگ تر پورتنة یادونیگ وروسته د پشگتو شعرونو پر سبکونو غإیگإي او د پشگتو

---

[1] کابل کالنة ، ۱۳۱۹ال کال ۱۲۳ مخ.

شعر دوره بندي کوي. استاد پشګتو شاعري پر دريو دورو ویګشلیګ ده: (۱) لرغونیګ طبقه او د هغو پلویان، (۲) د عروضي شاعرة طبقه، (۳) د عوامو د شاعرة طبقه. استاد لرغونیګ دوره له (۴۰۰) هـ خګخه تر (۱۰۰۰) هـ کال پوریګ کګنګلیګ ده. په خپله لیکنه کیګ ییګ د هریګ دوریګ حګانکګؤتیاوې، د هریګ طبقیګ د سبکونو خصوصیتونه په تفصیل سره په کګوته کؤي او یو بل سره ییګ توپیرونه خګرکګند کؤي دي او د ملي اوزانو او د عروضي قاعدیګ په پیروة فورمونه ییګ تشریح کؤي دي. د ساري په توکګه د ملي وزنونو په سبک، د شعرونو خصوصیات ییګ دا کګنګلي چیګ په دیګ کیګ ساده کګي او جذابت وي، د نورو ژبو کلمیګ په کیګ نه وي کارول شویګ، دعربي او پارسي وزنونو تابع نه وي ، د مضمون او فورم له پلوه اکثره پخوانیو اریایي شعرونو ته ورته دي. د لرغونو شعرونو یو خصوصیت دادی چیګ مضمون ییګ مسلسل او مرتب وي، خدای پالنه او دین پالنه په کیګ زیاته حګلیګإي، په مجموعي أول دا سبک پیګچلتیا نه لري او طبیعي مزایا لري او دغه راز حګینیګ نور خصوصیتونه.

استاد حبيبي په لرغونیګ دوره او ملي اوزانو پوریګ تؤلي دغه لاندیګ شاعران معرفي کؤي، دهغو د ژوند پر

خګرنګګوالي ییګ رنګا اچولیګ او د هغو هر شعر ییګ په هر اؤخیز أول تحلیل کؤی دی:

۱- د بیتګ نیکه ژوند او د شعر حګانګګؤتیاویګ

۲- دملکیار غرشین ژوند او د شعر حګانګګؤتیاویګ

۳- دتایمني ژوند او د شعر حګانګګؤتیاویګ

۴- دشیخ اسمعیل ژوند او د شعر حګانګګؤتیاویګ

۵- دقطب الدین بختیار ژوند او د شعر حګانګګؤتیاویګ

۶- د اکبر زمینداوري ژوند او د شعر حګانګګؤتیاوي

استاد حبیبي د پورتنیو شاعرانو پر شعرونو تر بحث وروسته پر دیګ مسایلو رنګا اچولیګ چیګ د پخوانیو سبک خګنګګه تغیر شو؟ د هغو عوامل ییګ تشریح کؤي دي. خګنګګه پشګتانه لوستي شاعران له عروضي شاعرة سره اشنا شول؟ او خګنګګه ییګ د هغو له شعري فورمونو خګخه کګتګه پورته کؤه؟

په دیګ ترخګ کیګ استاد حبیبي پر خیرالبیان غږیګږي او د هغه پر سبک رنګا اچوي، بیا د خیرالبیان پر وؤاندیګ د اخوند درویګزه پر مخزن الاسلام غږیګږي او د هغه سبک تشریح کوي، سربیګره پر دیګ د اخوند درویګزه او پیر روشګان د سبک پیروان معرفي کوي، دهغو پر پیګژند ګګلوة سربیګره د هغو د شعرونو حګانګګؤنیګ هم په ګګوته کوي.

استاد حبيبي په خپله ديگ ليكنه كيگ د پير روشگان او اخوند درويگزه پيروان په ديگ أول په كگوته كؤي دي:

### د پير روشگان پيروان:

۱- علي محمد مخلص
۲- ملا ارزاني خويشكی
۳- عبدالله
۴- ميرزا خان انصاري
۵- واصل

### د اخوند درويگزه پيروان:

۱- كريم داد
۲- عبدالسلام
۳- مصطفی محمد
۴- اخوند قاسم

استاد حبيبي د پير روشگان او اخوند درويگزه پر پيروانو سربيگره د (ملا الف) په نامه هم د يوه شخص او د هغه د سبک يادونه كوي او ليكي چيگ كگنگ شميگر پلويان ييگ درلودل.

ملا الف د كلات د اتغر په كلي كيگ استوكگنه لرله، چيگ له خپل استوكگنحگي لريگ ييگ خپلو زده كؤو ته دوام

ورکاوه. په زرم هجري کلونو کېگ یېگ ژوند کاوه او د (( بحرالایمان )) په نامه یېگ منظومه رساله لیکلیگ، دده په شعرونو کېگ اسلامي عقاید او نصایح حگلیگدل او د یوه مبلغ په تو کگه یېگ دنده اجرا کؤیگ ده. استاد حبیبي دغه لاندیگ کسان د ملا الف د سبک پلویان کگنگلي دي:

۱- ملا شیر محمد هوتک
۲- شیرمحمد ننگگرهاری
۳- میا فقیرالله جلال آبادی
۴- ملا عبدالرشید
۵- سعادت خان
۶- جان محمد
۷- ملا فرح الدین
۸- محقق کندهاری
۹- ملا زبردست
۱۰- مولوي عبدالحمید کاکؤ
۱۱- صاحب زاده مرادعلي کاموي
۱۲- دوست محمد ختگک
۱۳- ملا عبدالباقي
۱۴- اخوند کبیر پشاوری

تر ملا الف وروسته استاد حبيبي د خوشال خان پر سبک او مکتب هر اؤخيزه رنگا اچوليگ ده او وايي ((تر زرم هجري کال وروسته د پشگتو ادب او شعر په نؤة کيگ يو مخصوص غورحگنکگ او جنبش وتگوکيگده چيگ ددیگ غورحگنکگ لوی لارشگوونکی هماغه د پشگتو يو سردار او اوسپنيز شخص؛ خوشال خان ختگک دی چيگ پشگتو شعر ييگ په خپليگ روشگانه قريحيگ سره لوؤو پوؤيو ته ورساوه او کولای شو هغه ته د پشگتو ادب پلار او لوی استاد ووايو...))[1]

استاد حبيبي د خوشال د شاعرة د بيتونو شميگر تر پنحگوس زرو زيات شگيي او د ده د سبک خصوصيات دا کگنگي چيگ په هر أول فورم کيگ ييگ شاعري کؤيگ ده. په شعر کيگ ييگ ملي ولوليگ شگکاري، پر اجتماعي او تاريخي مسايلو مالا مال ييگ قصيديگ ليکلي، په شعر کيگ ييگ له بديعي صنايعو کار اخيستی، هجوه او تنقيد ييگ په شعر کيگ حگای کؤي، بيگلا بيگل فلسفي او اخلاقي مسايل ييگ په شعر کيگ بيان کؤي او له لوؤ تخيل خگخه ييگ په کيگ کار اخيستی دی.

---

[1] کابل کالنة، ۱۳۱۹ل کال،۲۰۲ مخ.

د خوشال خان د ادبي مکتب پیروان چیگ دده د کورنۍ له غؤو او نورو خگخه عبارت دی، په دیگ أول معرفي کوي:

۱- عبدالقادر خان ختگک

۲- اشرف خان هجري

۳- صدرخان ختگک

۴- سکندر خان ختگک

دا د خوشال خان ختگک زامن او د ده دمکتب پیروان دي، سربیگره پر دیگ د خوشال د سبک نور پیروان په دیگ أول معرفي کوي:

۱- یحیی اخندزاده

۲- خواجه محمد بنکگش

۳- معزالله

۴- عثمان

۵- اودل

۶- اشرف

۷- فاضل

۸- ابراهیم

گ۹- فضیل

۱۰- حسین

۱۱- مهین

۱۲- عصام
۱۳- ابو القاسم
۱۴- فتح علي
۱۵- عليم

تر خوشال بابا وروسته د رحمان بابا پر ژوند او ادبي سبک رنګا اچوي او تشريح کوي ييګ.

د رحمان بابا په باب وايي چيګ شاعر له روح خګخه ا لهام اخلي، له مادي کثافاتو حګان لريګ کوي، دده د شاعرة د بيان طرز سليس، ساده او روان دی. د عشق په جهان کيګ واقعيت ته کګوري، روحي عشق او الهام د ژوندانه محور کګنګي او يقين او ايمان پر خالي عقل لوړ کګنګي.

د دديګ مکتب نوميالي پيروان په ديګ أول په کګوته کوي:

۱- عبدالرحيم هوتک
۲- احمد شاه بابا
۳- اخوند کګدا
۴- عبدالعظيم
۵- ميانعيم
۶- ملا جمعه
۷- عبدالنبي
۸- شيګر محمد

۹- مطیع الله
۱۰- قاسم علي اپریدی
۱۱- یونس
۱۲- غفور
۱۳- صدیق
۱۴- شهنواز
۱۵- حافظ الپوري

تر رحمان بابا وروسته د پیر محمد کاکړ پر شخصیت او سبک خبریګ کوي او وایي چیګ د پیرمحمد کاکړ په شاعرة کیګ أیګر نازکه عشقي احساسات خګرکګند یګإي، استعارات او تشبیهات ییګ طبیعي رنګګ لري، الفاظ ییګ شفاف او خګرکګند دي. د تصویر او تجسیم لپاره خاص لغات کاروي، د اخلاقي تلقین لپاره هم داسیګ الفاظ نه کاروي چیګ د تګولنیګ تر حدودو بهر وي. ددیګ سبک او مکتب پیروان په دیګ أول دي:

۱- شمس الدین کاکړ
۲- کګل محمد
۳- سردار مهردل خان مشرقي

تر دې وروسته حمید مومند معرفي کوي او د هغه د سبک په باب وایي:

((خیالپالنه یا خیال پردازي ددیګ سبک غتګه حګانکګؤنه ده، اغراق او مبالغه ییګ بل خصوصیت دی، تلازم په کیګ په شګه أول مراعتیګإي، مثل او ممثل، لازم او ملزوم او ناتج او منتج، دغه راز أیګریګ نادریګ تشبه کګانیګ او استعاریګ په کیګ کارول کیګإي.))

ددیګ سبک پیروان په دیګ أول دي:

۱- کاظم خان شیدا

۲- محمدی

۳- میرزا حنان

۴- حاجي عبدالله محزون

۵- کاظم خان

۶- کامکګار

۷- ملا محمد اکرم

۸- صمد

تر حمید وروسته د قلندر سبک راپیګژني. قلندر (۱۱۰۰هـ) په حدودو کیګ په پیګشګور کیګ اوسیګده، په تګبر اپریدی و، استاد حبیبي ییګ د ژوند په هکله وایي:

(( قلندر د میرا په نامه یو مرشد درلود چیګ له هغه سره ییګ مینه د جنون تر حده رسیګدلیګ وه، دده عشق اوإدیګإي او أیګر سوزنده مراحل وهي، قلندر هر وخت په

سوات کیګ د میرا د دیدن لپاره د یویګ تپیګ پر سر منتظر پاتیګ کیګإي او په پای کیګ په أیګر حسرت، نهیلة او ناکامة سره مري او په همغیګ تپیګ کیګ خاورو ته سپارل کیګإي، کله چیګ ییګ میرا خاورو ته ورحګي، اوشګکیګ تویوي، دمینیګ او عشق جذابیت دی هم راکاإي اومري او دقلندر ترخګنکګ خاوروته سپارل کیګإي.)) [1]

د استاد حبیبي په نظر، سره له دیګ چیګ قلندر د حمید د سبک تابع دی، خو د هغه د سوزنده عشق له کبله په خپله د یو سبک د رامنحګته کیګدو سبب شوی، چیګ دعشق همدا سوز او زخمي احساسات ییګ په شعرونو کیګ شګکاري، ده په پشګتو کیګ یو مخصوص بحر رامنحګته کؤی چیګ ملي وزن لري. په پشګتو کیګ ملا حسن اسحق زی او ملا صالح محمد داوی پر دیګ بریالي شوي چیګ د قلندر د سبک په خګیګر شاعري وکؤي.

## د حماسیونو سبک:

استاد حبیبي هغه شاعران چیګ حماسي شعرونه ییګ ویلي، خو په مشخص أول د کوم مشهور شاعر د سبک تابع نه

---

[1] کابل کالنة، ۱۳۱۹، ۲۱۷مخ

دي، هغـه ییـګ د حماسـیونو تـر عنـوان لانـدیګ پـه جلاکتـه کګـورة کیـګ راوؤي، پـه دیـګ شـاعرانو کیـګ دغـه شـاعران شامل دي:

۱- برهانخان
۲- مسعود کګل یاسیني
۳- نورالدین
۴- زاهد خان ابراهیمزی
۵- عزیزخان رنګاخیګل
۶- سپینه
۷- ملاله

د داستان ویونکو سبک:

د پشـګتو ادبیـاتو پـه لرغونیـګ او منحګنـة دوره کیـګ یـو شمیګر داسیګ شاعران شته، چیګ حګینیګ کیسیګ ییګ پـه نظـم را اؤولـي یـا داسـتاني کـؤي دي، اسـتاد حبیبـي دوی د داسـتان ویونکـو د سـبک تـر نامـه لانـدیګ مطالعـه کـؤي او دهغـوی ژونـد ییـګ تشـریح کـؤی دی. دغـه لانـدې شـاعران یـا ناظمان په دیګ أله کیګ شامل دي:

۱- بای خان
۲- میاعمر خګمکنی

۳- اما الدین
۴- ارسلا
۵- فیاض
۶- مسعود
۷- غلام محمد
۸- نور
۹- احمد اخون خیگل
۱۰- رحمت داوی
۱۱- ملا احمد خان
۱۲- رحمت
۱۳- ملا نعمت الله
۱۴- ملا احمد.

## د عوامو سبک:

استاد حبیبي په پشگتو ادبیاتو کیگ د عوامو د سبک تر عنوان لاندیگ یو بل سبک ته هم پام کؤی او هغه ییگ خگیگؤلی دی، استاد حبیبي دا د پشگتو د ملي شاعرة تر تگولو غوره ذخیره بولي، چیگ د خلکو په بیگلابیگلو طبقو کیگ أیگر عام مقبولیت لري، دا شعرونه خپل حگانکگؤي وزنونه لري، چیگ یوازیگ ملي وزنونه دي ، هره ترانه، هر وزن

او بحر بيېګ خپل خاص اهنګګ لري، په دېګ وزنونو کېګ بېګلابېګل عشقي، حماسي، اخلاقي او نور مسايل بيان شوي دي، دا شعرونه ځګانګګؤی جذابيت او زؤه راکشګون لري، ددېګ سبک ځګينيګ مشهور لاروي‌ان دادي:

۱- کمال

۲- محمدی

۳- ميرا

۴- عبدالله نورزی

۵- خدای رحيم اکاخيګل

۶- عبدالودود سترياني

۷- ملا حيران

۸- ملا خواجه محمد

۹- صديق اخندزاده هوتک

۱۰- سليم زمين داوری

۱۱- ملا عبدالرحمن

۱۲- محمد ايوب بؤيګخګ

۱۳- طالب

۱۴- توکل د شګيګويګ

۱۵- سردار پردل خان

۱۶- ملا شيرمحمد

۱۷- برخوردار
۱۸- فیض الله
۱۹- سید کمال
۲۰- محمد یار صاحب زاده
۲۱- ملازاهد اندؤ
۲۲- محمد دین
۲۳- نوروز.

د استاد حبیبي تر دیګ خګیګؤنیګ، ویګش، تحلیل او ارزونیګ وروسته راحګو پر همدیګ لیکنیګ خپل نظر او ارزونیګ ته چیګ ایا دا لیکنه د تحقیق له اوسنیو اصولو سره خګومره برابره او خګومره دهغو په تول تللیګ ده؟ لوی استاد حبیبي ته خدای(ج) یو خارق العاده استعداد ورکؤی و، ده د خپل استعداد یوه درنه برخه همدیګ تحقیق ته بیګله کؤیګ، (( تاریخچه سبکهای اشعار پشتو )) هم دده یوه غوره تحقیقي او تحلیلي لیکنه یا رساله ده. سره له دیګ چیګ دا لیکنه یا کتابګګوتګی له نن (۱۳۸۲ل کال) خګخه اوه شپیګته (۶۷) کاله دمخه لیکل شوی او دا داسیګ مهال و چیګ د افغانستان د پشګتو او دري ادبیاتو په باب تګولیګ د ګګوتو په شمار تحقیقي لیکنیګ نه ویګ شویګ، خو استاد حبیبي د هغه نبوغ له مخیګ چیګ درلود بیګ داسیګ تحقیقي لیکنه

کؤیگ، چیگ اوس لا هم نویگ ده او د تحقیق له معاصرو او نویو اصولو سره هم شگه سمون خوري، د تحقیق د کگنگو اصولو له جملیگ خگخه حگینیگ مهم اصول دادي، چیگ یو تحقیقي اثر پر یویگ سریزیگ پیل کیگږي، چیگ لیکوال په کیگ د منابعو د یادونیگ ترخگنکگ د اثر د لیکلو ضرورت په کگوته کوي، دکتاب اصل متن چیگ د تحقیق اساسي برخه ده او تگولیگ پوشگتنیگ حگوابوي او د کتاب یا لیکنیگ وروستة برخه پاییزه یا نتیجه چیگ لیکوال په کیگ معمولاً د خپل کار ارزونه کوي او پر خگه شي چیگ نه دی بریالی شوی، د هغو یادونه کوي چیگ په اینده کیگ ییگ اصلاح کوي او یا ییگ هم نورو ته د سمون سپارشگتنه کوي.

د استاد دا لیکنه د تحقیق د نورو اصولو ترخگنکگ دا پورتني اصلونه هم لري، په پیل کیگ یوه سریزه راغلیگ چیگ ددیگ لیکنیگ ضرورت ته ییگ کگوته نیولیگ او د هغیگ تشیگ یادونه ییگ کؤیگ چیگ د ملي ژبیگ د ادبیاتو د پیگژندنیگ په برخه کیگ دا وخت موجوده وه. استاد حبیبي مخکیگ تر دیگ چیگ د پشگتو شعرونو د سبکونو پر پیگژندنیگ پیل وکؤي، خپله په عام أول د سبکونو د رامنحگتة کیگدو علتونه بیانوي او سبکونه راپیگژني، بیا د همغو عواملو په رنگا کیگ د پشگتو شاعرة

بیګلا بیګل سبکونه دهغو بنستګککګر، دکلام بیګلکګیګ او د هغو مشخصات په ګګوته کوي. هر سبک چیګ راپیګژني دهغه بکګرونأ (شالید) هم راپیګژني، لوستونکي ته د لوستو پر وخت دا سیګ ابهام نه پریګږدي چیګ هغه ته د پوشګتنیګ سبب شي. د یویګ شګیګ تحقیقي لیکنیګ یوه حګانکګؤتیا همداده چیګ حقیقت باید معلوم کؤي، اصلاً د تحقیق تعریف هم دادی چیګ ((د یویګ تګاکلیګ موضوع په باب رشګتینیګ، ژوره او عالمانه پلتګنه ده چیګ په هغیګ کیګ واقعیتونه، معناویګ او تطبیقي مواد هم تر ازموینیګ لاندیګ نیول کیګږي))[1] د استاد حبیبي دا لیکنه د تحقیق له همدیګ تعریف سره پوره پوره سمون خوري، د یویګ تحقیقي لیکنیګ لپاره حګینیګ معیارونه او حګانکګؤتیاویګ شته چیګ دلته ییګ یادونه کوو او بیا ګګورو چیګ دا حګانکګؤتیاویګ خګومره د استاد حبیبي پر دیګ لیکنه د تطبیق وؤ دي:

## ۱- خګیګؤنه به د یویګ تګاکلیګ مسالیګ پر محور خګرخي:

(۱) سرمحقق زلمی هیګواد مل، د پشګتو خګانکګیګ دماسترۀ دوریګ د خګیګؤنیګ میتودولوژي مضمون، لکچر نوتګ، (۱) مخ، ۱۳۸۲ل کال.

د استاد حبيبي ((د پشگتو شعرونو د سبکونو تاريخچه)) يوازيگ همدا موضوع خگيگؤي او يا لإ ترلإه هغه موضوعککگانيگ چيگ له ديگ سبکونو سره تؤليگ دي، دی هيگخگکله له موضوع نه خارجيگإي او نه يوه موضوع په بل متن ورکگأوي او نه حاشييگ يا لمنليکونه ورکوي.

## ۲- په خگيگؤنه کيگ به يو ابتکاراو نويتوب موجود وي.

دويم معيار خو سل په سلو کيگ حگکه پر ديگ ليکنه د تطبيق وؤ دی چيگ ترديگ دمخه هيگچا هم په تيگره بيا په دري ژبه د پشگتو شعرونو د سبکونو په باب دومره جامع ليکنه او تحليل نه دی کؤی. دا لومؤنة ليکنه ده چيگ په دري ژبه نسبتاً په تفصيل سره د پشگتو شاعرة پر عام تعارف او د سبکونو په باب په خاص أول رنگا اچوي او د ليکنيگ په متن کيگ راغلي شعرونه هم له دري ژباؤيگ سره راوؤل کيگإي، دلته دري ژبي نه يوازيگ د پشگتو شاعرة له سبکونو، بلکيگ دهر شاعر د شعرونو له فکري محتوا سره هم په شگه أول اشنا

کیګاِي، د یویګ ژبیګ شاعري د بلیګ ژبیګ ویونکي ته ورپیګژندنه هغه هم پر هغه مهال خپله یو نوشګت دی.

## ۳- خګیګؤنه به د یو ذهني استعجاب پر روحیه ولاؤه وي:

د استاد هره لیکنه پر ذهني استحکام او تمرکز ولاؤه ده،نویوالی په کیګ شته، ذهني پاشلتیا او له یویګ موضوع سره د نورو موضوعګګانو کګأون په کیګ نه شته او خګه چیګ د لوستونکي ضرورت وي، هغه د استاد له لیکنیګ ترلاسه کولای شي، ((د پشګتو شعرونو د سبکونو تاریخچه)) هم له دیګ أول لیکنو خګخه یوه ده.

## ۴- خګیګؤنـه بـه لـه یـوه ازاد فکـر سـره شـروع کیګإي:

د اسـتاد حبيبـي دا ليکنـه د اسـتاد حبيبـي د خپـل ازاد فکـر زیګإنده ده، دا سیګ نه ده چیګ چا پریګ د یو فکري قید او فشار په نتیجه کیګ لیکلیګ وي، هغه ذوق او علاقه چیګ استاد له ملي ژبیګ او ادب سره درلودله، دده فکر ییګ دیګ لیکنیګ هخګولی دی.

## ۵- خګیګؤنه به پر دغسیګ یو ذهنیت متکي وي چیګ کګویا په طبیعت کیګ هر خګه د یوه نظم او قانون تابع دی:

د استاد ليکنه هم د يوه نظم او سيستم تابع ده، له تاريخي تسلسل خګخه نیولیګ بیا د شعرونو د تشابه له مخیګ یو نظم تعقیبوي، د بیتګ نیکه له مناجاتو نیولګیګ او بیا تر وروستي هغه شاعر پوریګ چیګ دا وخت ییګ ده ته معلومات شوني وو، تګول په ترتيب او نظم سره راغلي دي.

## ۶- د خګیګؤنیګ مقصد بهد قوانینو او عمومي پرنسیپونو رابرسیګره کول وي:

استاد حبیبي په خپله دیګ لیکنه کیګ هم د تحقیق قوانینو او پرنسیپونو رعایت کؤی او هم ییګ د تحقیق لپاره پرنسیپونه پهکګوته کؤي، د ساري پهأول چیګ کله د یوه سبک یادونه کوي، لومؤی دهغه سبک مشخصات بیانوي او هر هغه شاعر او د هغه کلام چیګ همغه حګانکګؤنیګ ولري، په هغه سبک کیګ شاملوي.

## ۷- په خګیګؤنیګ کیګ به علت او معلول خګیګؤل کیګاِي:

د استاد حبیبي په دیګ لیکنه کیګ چیګ سبکونو ته حګانکګؤیګ شویګ، د هر سبک د رامنحګته کیګدو علتونه په کګوته شوي، دعوامو شاعري، په ملي اوازانو کیګ شاعري او همدارنکګه له نورو ژبو راغلي شعري

فورمونـه یـا عروضـي شـاعري او د هغـو علتونـه تګـول واضـح شوي دي.

## ۸- په خګیګؤنه کیګ به له اندازه کولو خګخه کار اخیستل کیګإي:

پـه تګـولنیزو او ادبـي خګیګؤنـو کیـګ ارزونـه د فزیکـي مقیاس په معیار نه وي، بلکیګ د اثر کمي او کیفي اؤخ تـه پـه کیګ کتنه کیګإي، استاد حبیبي د پشګتو ادبیاتو د هر سبک په باب یو عمومي جاج وؤاندیګ کؤی او له کمي او کیفي پلوه ییګ د یو سبک پلویان شمیګرلي او د اثارو پـر خګومره والي ییګ بحث کؤی دی.

## ۹- پـه خګیګؤنه کیـګ بـه شعوري تکتیـک خګخـه کګتګه پورته کیګإي:

دا چیګ یوه لیکنه د خګه لپاره کیګإي، خګه وخت کیګإي او ولیـګ کیګـإي؟ دیـګ تـه اسـتاد حبیبـي د خپلیـګ دیـګ لیکنیـګ پـه سـریزه کیـګ هـم اشـاره کؤیـګ، دده لـه اهـدافو

خگخـه یـوه موخـه داده چیـگ نـور خلـک د خپلـو ادبیـاتو لـه ماهیت، ارزشگت او کیفیت خگخه خبر کؤي او پـه دیـگ کـار کیگ أیگر بریالی شوی دی.

د یویــگ شــگیگ تحقیقــي لیکنیــگ تــر خگنکــگ خگیگـؤونکي یـا محقـق یـو لـؤ صـفتونه لـري، کـه چیگریـگ خگیگــؤونکی د هغــو خگشــگتن وي نــو کیگــدی شــي د خگیگؤنیــگ پــه تــول پــوره لیکنــه وکــؤي: اول دا چیــگ خگیگؤونکی باید پر خپله موضوع پوره لاس بری او حاکمیت ولــري، د امانــت ســاتونکی او د همکــارة پــالونکی وي. خگیگؤونکی باید تعصب ونه لري او پـه خگیگؤنـه کیـگ بایـد حگان له هر أول تعلقاتو لریگ وساتي او بیگ طرفه وي، منطق او استدلال ولري، بیان ییگ صریح او خگرکگند وي، ریاکار نه وي، زغم او حوصله ولري، د علم ژبه ییگ باید زده وي او نـور... ))[1] مـوإ چیـگ د یـو محقـق لپـاره پورتنیـو صـفاتو تـه کگـورو، نـو دا تگـول او تـر دیـگ زیـات پـه لـوی استاد حبیبي کیگ لیدل کیگإي، هغه پر خپلیگ تگاکلیگ موضوع دومره لاس بری دی چیگ تر ده دمخه چا پـه پشـگتو ادبیـاتو کیـگ پـر داسیگ مسایلو دومره لیکنیـگ نـه دي کـؤي، حگینیـگ ادبي

(۱)- سرمحقق زلمی هیگواد مل، د پشگتو خگانکگیگ د ماسترة دوریگ د متن خگیگؤنیگ د میتودولوژی مضمون لکچر نوتگ، ۱۳۸۲ل کال(۲) مخ.

پانککگیگ خپله د لومؤي حگل لپاره د استاد حبیبي لاس ته ورغلي او ده لومؤی حگل تشریح کؤي او خلکو ته ییگ وؤاندیگ کؤي دي، دده د تحقیق په نتیجه کیگ د پشگتو ادبیاتو أیگر تیاره کگوتگونه روشگانه شوي، د هر متن په انتقال کیگ ییگ له أیگریگ امانتدارة کار اخیستی او ان د تذکرة الاولیا د لیک پر لوستلو ییگ خو ییگ أیگر وخت تیگر کؤی او أیگر کؤاو ییگ کگاللی دی. استاد حبیبي د افغانستان او سیمیگ یو لوی عالم و او د عالم یو خصلت داوي چیگ پر علمي ارزشگتونو ولاؤ وي او د مسایلو په تحلیل کیگ له تعصب خگخه کار نه اخلي، ددیگ لیکنیگ ژبه خورا فصیحه او بلیغه ده، هیگخگ أول ابهام او پوشگتنو ته ییگ حگای نه دی پریگ ایشگی، لنأه دا چیگ د یوه محقق لپاره چیگ خگه حگانککگؤتیاویگ په کار دي هغه تگولیگ د استاد په وجود کیگ خوندي ویگ او کهد ده خپل حگانککگؤی استعداد او نبوغ ورسره یو حگای کؤو، نو خبره تردیگ نوره هم اوچتیگإي.

## د شکل له پلوه د استاد حبیبي د دیگ لیکنیگ خگرنککگوالی:

په عام أول یوه خگیگؤنه د شکل له مخیگ په دوه أوله ترسره کیگإي: ((کتابي یا کتابتوني تحقیق او بل ییگ ساحه یي تحقیق دی)) د استاد حبیبي ((د پشگتو شعرونو د سبکونو تاریخچه)) د شکل له مخیگ دا دواؤه حالتونه رانغاؤي. استاد حبیبي هم له بیگلا بیگلو کتابونو، اخحگونو خگخه ککتگه پورته کؤیگ او هم ییگ له خپلو هغو اثارو خگخه ککتگه اخیستیگ، چیگ ده ورپسیگ بیگلابیگلیگ سیمیگ پلتگلي او ترلاسه کؤي، لکه، تذکرة الاولیا چیگ یوازیگ خگلور پانگیگ یا اته مخه ییگ د استاد حبیبي لاس ته ورغلي او ترده دمخه دچا لاس ته نه وه ورغلیگ او نه ییگ تریگ معلومات درلودل. دلومؤي حگل لپاره استاد حبیبي د تذکرة الاولیا په باب خگیگؤنه او شننه وؤاندیگ کؤه او په همدیگ لیکنه کیگ هم د تذکرة الاولیا پانگیگ معرفي شویگ، شعرونه ییگ په دري ژبه واؤول شول، تحلیل او ارزونه ییگ وشوه، مخکیگ تردیگ چیگ تذکرة الاولیا دپشگتانه شعرا په لومؤي تگوک کیگ پر ۱۳۲۰ کال چاپ شي، دلته ییگ پر ۱۳۱۹ل کال په کابل کالنة چاپ کؤه او دا تحقیقي لیکنه ییگ د شعرونو د سبکونو د

پیگژندنیگ په اؤه وکؤه، د یادونیگ وؤ ده، چیگ تذکرة الاولیا د ساحه یي تحقیق په لؤ کیگ دهلمند دناویگ د ادم خان په کلي کیگ د زؤو کتابونو د پلتگلو پرمهال د لوی استاد پوهاند علامه عبد الحی حبیبي کگوتو ته ورغلیگ ده.

دا چیگ استاد په خپله دیگ لیکنه کیگ له نورو کگنگو اثارو لکه (( تمدن های اولیه، د کگوستاولوبون اثر، تاریخ تمدن هند، طبقات ناصري، ائین اکبري، حیات افغاني، حدو العالم من المشرق الی المغرب، تاریخ مرصع، د پشگتونخوا دشعر هارو بهار، کلید افغانی )) او نورو أیگرو چاپي اثارو خگخه کگتگه پورته کؤیگ ده، نو دا برخه ییگ د کتابي تحقیق برخه جوؤوي، له تذکرة الابرار ولاشرار، مخزن الاسلام او د حگینو نورو اثارو له قلمي نسخو خگخه ییگ هم کگتگه اخیستیگ ده. نو په دیگ أول ویلای شو چیگ استاد د خگیگؤنیگ له دواؤو أولونو کتابي (کتابتوني) او ساحه یي خگخه په دیگ لیکنه کیگ کار اخیستی دی.

استاد حبیبي د خگیگؤنو دمیتودونو په برخه کیگ په خپله دیگ لیکنه کیگ له تاریخي او تشریحي میتود خگخه کار اخیستی دی، یانیگ هم ییگ موضوع له تاریخي پلوه خگیگؤلیگ او تاریخي قدامت ییگ په پام کیگ نیولی او هم

ییګ شاعري د شکل او محتوا لـه مخیـګ تشریح او ألبندي کؤیګ ده، د یو سبک توپیر ییګ له بل سره تشریح کؤی دی.

خګرنکګه چیګ دا لیکنه له او سمهال (۱۳۸۲) خګخه (۲۷) کاله دمخه تر سره شویګ او پر همغه مهال چاپ شویګ، نو دا وخت چیګ له استاد حبیبي سره کوم اثار موجود وو، د همغو پـه رنګـا کیـګ ییـګ د پشـګتو ادبیـاتو تـاریخي دوریـګ ویګشلیګ، خو کله چیګ تر دیګ لیکنیګ نإدیګ دوه کالـه وروسته د (محمد هوتک پتګه خزانـه) د استاد حبیبي لاسته ورغله او په پتګه خزانـه کیـګ د امیر کروؤ د شعر پـه شتوالي سـره د پشـګتو دلاسـته راغلیـګ لیکلیـګ شـاعرة نیګتګـه (۱۳۹) هـ ق کال ورسیګده، نو بیا په دیـګ لیکنـه کیـګ راغلی ویګش، خپله خپـل رنکـګ بـایلي. د پشـګتو ادبیـاتو دتـاریخي دورو پـه باب نـورو پوهـانو هم خپـل نظرونـه خګرکـګند کـؤي او ددوی پـه نظرونـو کیـګ أیګـر توپیرونـه او تضـادونه شـته او د معاصرو ادبپوهانو له نظره کره کتنـه غـواؤي، لـه نیګکـه مرغـه زموإ د ادبیـاتو د معاصر دوران یـو لـوی ادبپـوه مرحـوم کاندیـد اکاأمیسـن محمدصـدیق روهـي د پشـګتو ادبیـاتو دتـاریخي دورو د تګاکنیـګ پـه اؤه د تګولـو پشـګتو ادبپوهـانو نظرونـه سـره راتګـول کـؤي او هـر یـو ییـګ بیګلابیګـل تحلیـل کـؤی، شـنلی او ارزولـی دی، مشـترک تګکـي او د ادبپوهنیـګ لـه

معیارونو سره سم یيګ منطقي نظرونه سره یوځای کؤي او په پای کیګ یيګ یوه نسبتاً معقوله لار ایستلیګ، استاد روهي د پښــګتو ادبیــاتو دتــاریخي دورو ویګــش پــه خپــل اثــر ((د پښــګتو ادبیــاتو تــاریخ معاصــره دوره )) کیــګ راوؤی او پــه مجمــوعي أول یيــګ پښــګتو ادبیــات پــر دریــو لویــو دورو (لرغونیګ، منحګنة او معاصره) ویګشلي چیګ منحګنة او معاصره یيګ بیا په خپل وار پر خګو نورو پؤاوونو ویګشلي دي، نو زما په نظر د ادبیاتو د دورو د ویګش په اؤه دا وروستی ویګش تر تګولو غوره او منطقي شګکاري.

د مکتبونو او سبکونو پــه اؤه ســره لــه دیــګ چیــګ استاد حبیبي یو شګه ویګش کؤی او دا ویګش پر داسیګ مهال شوی چیــګ د مکتــب او ســبک د تــوپیر او تعبیــر پــه اؤه پــه پښــګتو ادبیاتو کیګ هیګخګ لیکنه نه وه شویګ او استاد پــه دیــګ برخــه کیــګ لومــؤني پاخــه ګګامونــه پورتــه کــؤل، خــو د ســبک پیــګژنــدنیګ او مکتــب پیــګژنــدنیګ د اوســنیو معیــارونو لــه مخیګ کیګدی شي د استاد حبیبي په ویګش کیګ یو خګه تغیر راشي، خو لکــه خګنګګــه چیــګ استاد پــه سریزه کیــګ ورته اشاره کؤیګ، چیــګ دا لیکنــه د یــوه ضرورت لــه مخیــګ ترسره شوه او کیګدی شي له نیمګګؤتیاوو بــه تشــه نــه وي او دا نــو بیــا د نــورو کــار دی چیــګ دا نیمګګؤتیاویــګ پســیګ حــل

کـؤي. دغـه راز اسـتاد د یـوه تحقیقـي اثـر د اصـولو مطـابق د خپلیـګ لیکنیـګ پـه پـای کیـګ نتیجـه او یـا د خپـل بحث خلاصه هم وؤاندیګ کؤیـګ چیـګ د خپلیـګ دیـګ لیکنیـګ نچـوؤ ییـګ راکشـګلی او پـه دیـګ کیـګ ییـګ یـو حګـل بیـا تګولو سبکونو ته په لنأیز سره اشاره کؤیګ ده.

د یادونیګ وؤ ده چیګ د استاد حبیبي دا لیکنه دتاریخ پـه بیګلابیګلـو پؤاوونـو کیـګ د پشـګتو شـعرونو پـر خګرنکګوالي، په تیګره بیا پر سبکونو رنګا اچوي، خو لیکنه پـه دري ژبـه ده او تګـول هغـه شعرونه چیـګ پـه متن کیـګ پـه پشګتو ژبه راغلي، په دري ژبه دهغو منثوره ترجمه او مانـا هم شویګ ده، په دیګ أول که یو دري ژبی پر پشګتو شعر د بحث خګرنکګوالی مطالعه کوي، نو د پشګتو شعر محتوا تـه هم پـه شګه أول ور داخلیګدی شي.

په پای کیګ زه د یوه لوستونکي په توګګه وایم چیګ د استاد حبیبي پر دیګ لیکنیګ که خګګه هم د یویګ پیګؤة له نإدیګ خګخه دري برخیګ تیګریګ، خو بیا ییګ هم خپل ارزشګت او ماهیت په کلکه ساتلی دی، باید په پشګتو ژبه هم وژباؤل شي او موإ خپل حګوان نسل او د ادبیاتو لارویانو ته خګرکګنده کؤو چیګ زموإ نابغه محقق چیګ اووه شپیګته

کاله د مخه خگه لیکلي، هغه اوس هم د اوسني معاصر تحقیق له اصولو سره تر أیگره حده برابر او په تول پوره او کره دي.

# د تذکرة الاولیا ځانګړتیا او لرغونتیا

((تذکرة الاولیا)) د پښتو ادب لومړنۍ لاسته راغلې ادبي تذکره ده چې د بارک خان ماکو سابزي زوی (سلیمان ماکو) لیکلې ده. د تذکرة الاولیا د لیکلو تکل په خپله د سلیمان ماکو په وینا له (۶۱۲هـ ق) کال څخه شوی دی، دا چې تذکرة الاولیا د کوم کال پر کومه نېټه بشپړه شوې؟ د دې یادونه په تذکرة الاولیا کې نه ده راغلې، خو د پښتو ادبیاتو څېړونکي د تذکرة الاولیا د لیکلو نېټه همدا (۶۱۲هـ ق) کال شاخوا مهال ګڼي. تذکرة الاولیا ته ځکه د پښتو ادبیاتو لرغوني او لومړنۍ ادبي تذکره وایو چې تر دې د مخه د پښتو ادبیاتو د لیکوالو کومه بله تذکره په لاس کې نه شته. یوازې د هاشم سروانی (د سالو وږمه) د یوې ادبي تذکرې یادونه شوې چې د هغې متن لا تراوسه ترلاسه شوی نه دی. نو په دې وجه تذکرة الاولیا په پښتو کې تر ټولو لرغونې لاسته راغلې تذکره ګڼل کېږي. دا تذکره چې ټولې

ځلور پاڼې دي ټول (اته مخه) او ډک (اووه مخه) کېږي، د هلمند دناوې د ادم خان په کلي کې د زړو کتابونو د پلټلو پرمهال د لوی استاد پوهاند علامه عبدالحی حبیبي ګوتو ته ورغلې، لومړی یې د پښتانه شعرا په لومړي ټوک کې پر ۱۳۲۰ ل کال چاپ کړې او بیا پر ۱۳۲۱ ل کال د استاد حبیبي له تعلیقاتو، شرحې او سریزې او اصل متن سره یوځای د سرمحقق زلمي هېوادمل په زیار چاپ شوې او دغه راز پر ۱۳۷۹ل کال یو ځل بیا دعلامه حبیبي د څېړنو دمرکز له خوا دهغې له انګلیسي متن سره یوځای چاپ شوې ده. سره له دې چې د تذکرة الاولیا یوازې (اووه ډک مخونه) ترلاسه شوي خو دا اووه مخونه هم له کلتوري، تاریخي، ادبي، عرفاني او ژبني پلوه د زیات ارزښت وړ دي. تذکرة الاولیا موږ په لومړي ګام کې پر دوو برخو وېشلای شو:

الف-د سلیمان ماکو خپله لیکنه چې په نثر ده او د شاعرانو ژوند لیک په کې راغلی دی.

ب-په تذکره کې د شاعرانو راغلی کلام چې په نظم دی.

**الف-د سلیمان ماکو نثر:** په عمومي ډول د سلیمان ماکو نثر خوږ، روان، ساده او له ځانګړي اهنګه ډک دی. په

خاصو ځايونو کې يې سجع کارولې چې نثر ته يې زياته ښکلا وربښلې ده.

دلته به د سليمان ماکو د نثر څو جملې راوړو او بيا به وروسته دده د نثر پر ځرنګوالي بحث وکړو.

((... زه غريب خاورې سليمان زوی د بارک خان ماکو سابزي چې په وياله د ارغستان هو سېږم او په دې مزکو پايېږم، په سن دولس شپږ سوه دهجري تللی وم او د پښتنخا په راغو او کليو ګرځېدم او مراقد د اوليا او واصلينو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل، او ددوی په خدمت کې خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ...))

((... نقل هسې کاندي يارانو چې په روزګار د شيخ بيټني کې د ده ورور چې سړبن نومېد، او پرشيخ هم خورا ګران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به ويل خپل ورور ته...))

((... نقل کاوه سي چې په روزګار د غازي شهاب الدين چې پر کفر يرغل و، شيخ ملکيار چې غرشين ستانه و هم ملګری و د شهاب الدين چې په ډيلي کې هغه ستر واکمن تاتوبی ور وښانده، او هم هورې مړ سو...))

((... نقل کاوه سي چې بختیار مې ستر ستانه و، له ده نه څرګند سوي دي، هغه کرامات چې مو وکتل او وویل...))

پورتنیو څو جملو او د سلیمان ماکو نثر ته چې موږ په عمومي ډول نظر کوو، نو له ژبني پلوه دماکو نثر د دریو ژبو له لغتونو څخه جوړ دی. الف- پښتو، ب- عربي، ج- فارسي. دګرامري جوړښت له مخې هم د پښتو له اوسنی محاورې سره توپیر لري- هـ- ځینې پخوانی متروکې کلمې هم لري چې دلته پرې رڼا اچوو:

**الف–د سلیمان د نثر پښتو لغتونه:** که په عمومي ډول د سلیمان ماکو نثر ارزول کېږي، نو دا تقریباً په نره پښتو نثرونو کې حسابېدلای شي، ځکه د پردیو ژبو تاثیرات پرې ډېر کم دي او ان که اوس هم څوک یو پښتو نثر لیکي، نو دنورو ژبو دومره کلمې به ضرور په کې کاروي، لکه خپله چې زه دا لیکنه کوم په عادي ډول رانه د نورو ژبو کلمې کارول کېږي، نو د سلیمان ماکو له نثر څخه دا سې ښکاري چې هغه وخت د پردیو ژبو (عربي او فارسي) تاثیرات پر پښتني ادبي چاپېریال وو، خو دومره زیات نه وو چې ټول نثر متاثر کړي. دلته به دده د نثر سوچه پښتو لغتونو ته اشاره وکړم: لوی، استازی، روښان،

ویاله، هوسېږم، خاورې، راغه، کلی، پلټل، لوری، موندل، څښتن، پاڅېدل، وینا، لولي، شپه، ستانه، کول، سندرې، یرغل، غرشین، ملګری، ستر، واکمن، بری، مروړل، پاړکی، څرګند، مېشت او داسې نور...

د سلیمان ماکو په نثر کې کارول شوي اکثره پښتو لغتونه اوس هم په خپله هماغه پخوانۍ مانا او مفهوم او هماغه شکل کارول کېږي. د سلیمان ماکو د نثر له پوخوالي څخه داسې ښکاري چې پښتو نثر به تر دې پخوا ښه اوږد مزل کړی وي، چې د سلیمان ماکو د مهال داسې پخې مرحلې ته رسېدلی دی.

**ب-د سلیمان ماکو په نثر کې عربي لغتونه:** د سلیمان ماکو په نثر کې یو شمېر عربي لغتونه هم شته، خو دا اکثره داسې لغتونه دي چې مذهبي او عقیده یې مفاهیم لېږدوي، دا ډول لغتونه اکثره اوس هم د مذهبي اصطلاحاتو په بڼه موجود دي او ترجمه یا انډولونه یې ډېر ممکن نه برېښي.

عربي ژبې د اسلام تر راتګ وروسته په افغانستان کې خپلې اغېزې وښندلې، دا اغېزې لومړی پر فارسي ژبه او وروسته پر پښتو ژبې محسوسې شوې، خو د پښتو په انډول یې پر فارسي

ژبـه اوس هـم تـاثيرات زيـات دي. دلتـه بـه څـو عربـي لغتونـو تـه اشاره وکړو:

قـدوة الواصـلين، مراقـد ، حمـد ، برکـت، نصـيب، صـلی الله عليه وسلم، غريب، هجري، اوليا ، آل، اما بعد ، نقـل، عبـادت، مبارک، واقع، قبول، کفر ، شيخ او ځينې نور...

**ج –د سليمان مـاکو پـه نثر کې فارسي لغتونـه:** د سليمان ماکو په نثر کې د عربي لغتونو په انډول فارسي لغتونه ډېـر کـم دي. خـو د اسـتاد علامـه عبـدالحی حبيبـي پـه نظـر د سليمان ماکو پر نثر د فارسي ژبې د هغـه وخت د نثر څه اغېـزې شـته، د سـليمان مـاکو تـر عصـر نـږدې دوه سـوه کالـه دمخـه د غزنويـانو پـه عصر کې فارسي نثر ډېر پرمختـګ کړی و ، ډېر روان ساده او عام فهمه و ، لنډې لنډې جملې يې لرلې او له ابهام او تکلف څخه خالي و. د سليمان ماکو نثر هم ساده، سليس او روان دی، جملې يې هم لنډې لنډې دي، ابهام، تصنع او تکلف نه لري. دفارسي نثر د هغه وخت دخوږ لنيـو د څه ناڅه اغېزمنـۍ ترڅنګ يو شمېر فارسي لغتونـه هـم د سـليمان پـه نثر کې ليـدل کېـږي، لکـه: سـپاس، خاکپـای، بـزرګ، روزګـار، مهربـان، درخواست او ځينې نور...

**د – د سلیمان ماکو دنثر ګرامري جوړښت:** سره له دې چې د ماکو نثر کې زیاتره سوچه پښتو لغات کارېدلي او لیکنی متن یې هم سړي ته ډېر خوند ورکوي، خو دې سره سره یې لیکنۍ بڼه له عامې محاورې او همدارنګه د پښتو ژبې له اوسني ګرامري جوړښت سره اړخ نه لګوي. د نثر دا حالت کېدی شي د دوو عواملو له وجې رامنځته شوی وي: کېدی شي دهغه وخت دپښتو محاورې ژبه همدا شان یادې ته ورته وه، یا هم نثر په دې بڼه لیکل کېده او یا هم دعربي ژبې تاثیر پر فارسي او د فارسي هغې پر پښتو پرېوتی وي. دماکو د نثر په ځینو جملو کې مبتدا او خبر، فاعل او فعل، مضاف او مضاف الیه سره وړاندې وروسته شوي دي. دا کار دپښتو له اوسني ګرامر جوړښت سره توپیر لري، کېدی شي د لرغوني دورې نثر همدا بڼه درلوده. خو بیاهم د سلیمان ماکو نثر، د پیر روښان او دهغه دپلویانو او همدارنګه د اخوند درویزه او دهغه د پلویانو تر نثر ډېر زیات خوږ، سوچه او روان دی؛ تکلف، تصنع او ابهام په کې نه شته. دلته به دماکو دنثر څو ترکیبونه راوړو او بیا به دپښتو ژبې د اوسني ګرامر جوړښت اصله بڼه هم ورسره ولیکو:

## د سلیمان ماکو نثر       او سنی ګرامري جوړښت

وایم حمد و سپاس د لوی خاوند    دلوی خاوند حمد وسپاس وایم
چې دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو    چې د کونینو بادار او د ثقلینو رحمت دی
په ویاله د ارغستان هوسېږم    د ارغستان په ویاله هوسېږم
مراقد د اولیا او واصلینو مې پلټل    د اولیا او واصلینو مراقد مې پلټل
او تناکې وچاودلې د پښو    او د پښو تناکې مې وچاودلې
سړبن نه درلود زامن    سړبن زامن نه درلودل
او هر کله به ویل خپل ورور ته    او هر کله به یې خپل ورور ته ویل

او داسې نور ترکیبونه او نورې جملې. دلته موږ د سلیمان ماکو په نثر کې ګورو چې نثر له عامې محاورې څخه لرې شوی دی. په پښتو کې عامه قاعده همدا ده چې اول فاعل راځي بیا فعل، اول مبتدا وي او بیا خبر، خو د سلیمان په نثر کې دا قاعده تر ډېره حده معکوسه ده.

**هـ - د سلمیان ماکو په نثر کې پخواني لغتونه:** د سلیمان ماکو په نثر کې پر هغو سوچه پښتو کلمو سربېره چې اوس هم په پښتو کې استعمالېږي، ځینې داسې نور پښتو لغتونه هم شته چې یا اوس نه کارېږي او یا هم په لږ شان لفظي تغیر او تحول سره کارېږي، یانې متروکې کلمې په کې شته او

متحولې کلمې هم په کې شته. دلته به دې ډول کلمو ته هم اشاره وکړو:

| په تذکرة الاولیا کې | اوسنۍ بڼه |
|---|---|
| کارېدلې بڼه | |
| پښتنخا | پښتونخوا |
| مرستون | مرسته غوښتونکی |
| (په پخوانۍ بڼه اوس متروکه ده) | |
| لولې | ویلې |
| جوبله | (جنګ) پخوانۍ بڼه یې متروکه ده. |
| پپناه | پوه پنا |
| دښنه | دښمن |
| کتارو | تورې(پخوانۍ بڼه یې اوس متروکه ده) |
| ډېر زښت | ډېر زیات |
| ګڼون | شمېر |
| کول | کورنۍ |
| بمیا (بومیا) | لارښود (بمیا کلمه هم اوس متروکه ده) |
| وګروهېد | متعقد شو (دا بڼه هم اوس متروکه ده) |

او ځینې نورې کلمې چې اوس یا متروکې دي او یا یې هم بڼه کې بدلون راغلی دی. په تذکرة الاولیا کې د دغسې مړو او پخوانیو کلمو شتوالی د دې تذکرې لرغونتیا او ځانګړتیا په ګوته کوي.

**ب – په تذکرة الاولیا کې د نظم برخه:** په تذکرة الاولیا کې د نثر په انډول د نظم برخه نوره هم نړه او سوچه پښتو ده. د دې یوه وجه دا ده چې پښتانه شاعران له خپل ولس سره ګډ اوسېدل او ولس هغه وخت معمولاً د غرو په لمنو کې اوسېده. دغرو لمنې په طبیعي ډول د پردیو ژبو له اغېزو څخه لرې او خوندي وې. عربي او فارسي ژبو اکثره د دربارونو له لارې خپل تاثیرات ښندل، نو هغه شاعران چې له درباره لرې وو، له دې تاثیراتو خوندي وو. دا چې خپله د سلیمان ماکو په نثر کې د عربي او فارسي ژبې تاثیرات شته، د دې وجه دا ده چې کېدی شي، سلیمان ماکو د عربي او فارسي ژبو کتابونه لوستي وي او دا تاثیر یې ترې راخپل کړی وي. په تذکرة الاولیا کې ټول (څلور) ټوټې شعرونه راغلي دي. چې لومړی یې د بېټ نیکه مناجات دي، دویم یې د شیخ ملکیار غرشین یو پارکی دی، درېیم یې د شیخ اسماعیل یو پارکی او څلورم یې د قطب الدین بختیار یو نظم دی.

د بېټ نیکه په شعر کې یوازې د (خدایه) کلمه راغلې چې هغه هم له فارسي سره مشترکه ګڼل کېږي، نور په ټول شعر کې د بلې ژبې

کلمه نه شته. د ملکیار غرشین په شعر کې د (اسلام) او (غازیانو)

کلمې راغلي چې ريښه يې عربي ده، نور ټول شعر کې د بلې ژبې کلمه نه شته.

د شيخ اسماعيل په شعر کې يوازې د (ابليس) او (لعين) کلمې، چې عربي دي نور د بلې ژبې لغتونه په کې نه شته او د قطب الدين بختيار په شعر کې بيا ګرد سره د بلې ژبې کلمه نه شته، ټول سوچه پښتو لغتونه دي. له دې پورتنيو څرګندونو دا ښکاره کېږي چې په تذکرة الاوليا کې راغلي شعرونه (د قطب الدين بختيار له شعر پرته) چې له ماکو سره هم مهاله ګڼل کېږي، نور شعرونه د ماکو ترمهاله پخوا ويل شوي دي. ځکه نو دې ټولو شعرونو کې د پرديو ژبو تاثيرات له کومې يوې دوو کلمو پرته نه ترسترګو کېږي، زموږ له پورتنيو خبرو څخه دا نتيجه راځي چې په تذکرة الاوليا کې راغلي شعرونه د ماکو تر نثر پخواني او زيات سوچه دي او اکثره په ملي اوزانو کې دي، په خپله د سليمان نثر هم تر يوه حده سوچه، روان او شفاف ګڼل کېږي او د پښتو ډېر زاړه لغات په کې کارېدلي دي.

# د شیخ میانور او خوشال ترمنځ دیني مناظره

لوی خان خوشال خان ختک ته لوی خدای(ج) یو فوق العاده او خارق العاده استعداد ورپه برخه کړی و. خوشال دهمدغه خدای(ج) لورولي استعداد په برکت دومره لوی، ځواړخیز او ځو بعدیز شو چې د تېرو دریو سوو کلونو په بهیر کې یې پر شخصیت اند او فکر په سوونو څه چې په زرګونو لیکنې شوي خو بیا لاهم د خوشال حق نه دی ادا شوی او لا هم خوشال خلکو ته نوی دی او لا څېړنې او پلټنې ته اړتیا لري. زموږ په دودیزه ټولنه ځوک فکر کولای شي چې یو صوفي، عابد او روحاني شخصیت دې لا د بزم او رزم جذبه او ولوله هم ولري او یا دې هم د جام او قام شاعر د خدای(ج) د مینې په خم کې دومره ډوب وي چې هر ظاهربین او ساده لید یې پر لیدلو بریالی کېدلای نه شي. د خوشال پر ټولنیز، سیاسي، ملي او فرهنګي شخصیت او دریځ ډېرې لیکنې شوي، خو د خوشال د دینداری، ایمانداری، دینپالنې (اسلامپالنې) او دینپوهنې برخه او اړخ لازیاتو، دقیقو او نویو څېړنو ته اړتیا لري. که موږ

په دینپوهنه کې د خوشال دفکر او خیال ژورو ته متوجه شو او هغه په ژور ډول تحلیل کړو ، نو یو لوی (فقهي ) خوشال به مو په نظر راشي.

د خوشال دستارنامه، دهغه ګڼ منظوم اثار لکه فضل نامه، غزلونه، قصیدې او رباعیات ټول ددې ښکارندوی دي چې خوشال د یو لوی فقهي عالم په توګه په اسلامپوهنه کې د یوې ژورې مطالعې خاوند و. څوک چې په دین (اسلام) کې پوره پوره مطالعه او ژورتیا ونه لري د فضل نامې غوندې یو مهم دیني اثر نه شي لیکلای او هغه هم بیا په نظم چې تر نثر یې لیکنه او مفهوم اخیستنه او رسونه طبعاً ډېره زیاته مشکله ده.

موږ دلته د خوشال بابا د دیني معلوماتو او ژورتیا پر ټولو خواوو نه غږېږو او نه دا لیکنه ددې وس لري. یوازې د خوشال پر یوې مثنوي غږېږو چې دا مثنوي دیوې دیني مناظرې یو بشپړ تصویر راکوي. اصلي کیسه دا سې ده چې کله پیر روښان د مغلو پر ضد خپل روحاني تحریک پیل کړی و ، نو کله چې دې تحریک زور واخیست، مغل واکمن وارخطا شول، څرنګه چې روښاني تحریک روحاني او اسلامي بڼه لرله نو مغلو فکر وکړ چې ددې تحریک د مخنیوي لپاره باید روحاني شخصیتونه او عالمان پیدا کړي او مقابلې ته یې وګوماري. نو لومړی یې سید علي ترمزي له بخارا څخه پښتونخوا ته راوست، د سید علي

ترمزي د پیروانو او شاګردانو په ډله کې یو هم اخوند درویزه ننګرهاری و چې د روښان پیر مقابلې ته یې ځان تیار کړ.

پیر روښان د خپل تحریک لپاره د ( خیرالبیان ) په نامه یو کتاب ولیکه چې له دیني نصیحتونو ډک دی. خو اخوند درویزه دا کتاب (( شرالبیان ) وباله او د ( مخزن الاسلام ) په نامه یې د خیرالبیان پر ضد یو کتاب ولیکه، دارنګه اخوند درویزه د پیر روښان د نورو کتابونو پرضد هم نور کتابونه ولیکل.

د اخوند درویزه ((مخزن ) ) د سوات په پښتنو کې ډېر مشهور شو ، خوشال خان او افضل خان خټک ددې شهرت وجه دا ګڼي چې دا وخت پښتنو کې علم کم و ، نو یو سړی په کې په ډېر کم علم او پوهې هم ملا یی، پیری او مرشدی ته رسېدلای شو. په همدې وخت کې اخوند درویزه په سوات کې راپیدا شو او ډېر ژر یې شهرت ترلاسه کړ، خوشال په خپله یوه مثنوي کې وايي:

په لږ علم په دا ملک کې لوی ملا شه — درویزه له یوه لوري راپیدا شه
خپل کتاب یې په کاغذ مسوده کړ — چې یې حال ددې عالم مشاهده کړ
هغه هم مجهول بیان و ناپسندلی — د روښان خیرالبیان یې و لیدلی
په ویل کې چې یې زړه و هسې توی شه — ده چې خوشې میدان بیا موند سخن ګوی شه
درویزه تر مجهد ورته لا ښه و — هغه وخت په پښتنو کې علم نه و
د یزید په ستایش کې مارجي شه — په مذهب سني مذهب و خارجي شه
درویزه به د یزید ډوزې بللې — ملنګانو به یزید ته کړې ښکنځلې
دوم یې وواهه له کشفه و کراماته — ملنګان یې واړه وایستل له سواته
وعالم ته یې خپل کتاب بدیع کړ — په دا فن یې د درست سوات عالم مطیع کړ
نقش یې کېناوه په مکر خپل اولاد ته — هیڅ یې نه کاته دې بدو وفساد ته
په دا مکر یې حلوا سره لړلې... ) ) — درویزه د درویزې او ګره خوړلی

درویزه په پښتنو کې دومره مطرح شو چې چا دهغه نوم او د هغه د کتاب نوم په اصطلاح ((بې او دسه)) نه شو اخیستلای، پلویانو یې ویل چې الهام دی چې پر ده را اورېدلی دی. نو ځکه یې احترام پر خلکو واجب دی.

خوشال لومړنی شخص و چې دا حاکمه فضا یې ماته کړه، اخوند درویزه یې کم علمه او کتاب یې ورته له ګڼو، علمي، انشايي، املايي او نورو غلطیو ډک وباله. د خوشال دې سیاسي او مذهبي جرئت په پښتنو او په تېره بیا په سوات کې یوه سخته هنګامه جوړه کړه، ډېر کسان د اخوند درویزه ملاتړ ته راووتل، په تېره بیا د اخوند درویزه مریدان او پیروان چې په دې ټولو کې شیخ میانور زیات مطرح و، دی د درویزه له خاصو مریدانو او ارادتمندانو څخه و، ده دوه نور شاګردان هم درلودل، دوی ټولو پرخوشال د تکفیر تور پورې کړ.

شیخ میانور له محلي دربار سره هم ښه راشه درشه درلودله او دهغوی له خوا هم ورته دا پلان ورکړل شوی چې خوشال په عامه ذهنیت کې تکفیر کړي. دمغلو له دې کار څخه هیله دا وه چې کله خوشال په عامه ذهنیت کې کمزوری شي، نو د پښتنو د راټولولو او انسجام چانس به یې کمزوری او کم شي. نو ددې کار لپاره یې شیخ میانور ګومارلی و.

## خپله لوی خان خوشال بابا ملا میانور په یوه مثنوي کې داسې معرفي کوي:

چې ملا میا نور په حکم دورمي ... هم هغه د سوات په ملک کې سیرۍ مومي
میا نور که د خنزیر غوښې روا کا ... ملایان به باندې ژر جوړه فتوی کا
د میانور مفتیان د سوات په ملک کې دوه دي ... الله داد او دوست محمد دواړه یاوه دي
لږ یې علم لږ یې لوسته ډېر تقریر کا ... چې میا نور یې لمسوي هغه تزویر کا
اوس به وایم د میانور له حقیقته ... چې تر نورو نه دی لا دی بد خصلته

همدې میانور پر خوشال د (کفر) او (رفض) تورونه پورې کړل، خو خوشال بابا پر اخوند درویزه او دهغه پر مخزن چې کوم انتقادونه کړي وو، له هغو څخه هېڅکله په شا نه شو. بلاخره خبره تر دې حده ګرمه شوه چې د سوات یو شمېر سپین ږیري خوشال بابا ته راغلل او ورته یې وویل چې ستا د خبرو په وجه په سوات کې یوه غټه ستونزه او هنګامه پیدا شوې، یا معذرت وغواړه او یا هم له شیخ میانور سره مناظرې ته حاضر شه! لوی خان خوشال خان په خپله یوه مثنوي کې چې تاریخ مرصع کې افضل خان خټک ټوله رانقل کړې، د دې مناظرې کیسه کړې. سرمحقق زلمی هېوادمل ((ننګیالی د زمانې)) کې په دې باب لیکي:

((خان دلنګر خټک په کلي کې اوسېده، یوه ورځ خان د توت د یوې ونې لاندې استراحت کاوه، چې ملک سنګر،

میاخان او مانکی خوشال خان ته راغلل، دی یې پاڅوه او ورته یې وویلې ټول سوات کې دې هنګامه جوړه کړې ده، ته لاخوب کوې هېڅ تشویش درسره نشته، بیا یې خوشال خان ته وویل چې موږ دقوم دمشرانو په توګه دا وظیفه لرو، چې دفساد مخنیوی وکړو، نو ته یا د اخوند درویزه کتاب ومنه او یا د شیخ میانور د اعتراضونو ځواب وو ایه. خان د اخوند دکتاب له منلو انکار وکړ او بلاخره دمیانور او خوشال خان ترمنځ مناظره وشوه او شیخ میانور ډېره بده ماته ومونده بیا خلکو د دواړو ترمنځ صفایي وکړه. خوشال خان له شیخ میانور دا غوښتنه هم وکړه چې له مغلي حکومت سره به سازوباز نه کوي، په ځرګنده خو شیخ میانور له مغلو سره دخط کتابت نه کولو وعده وکړه خو نیت یې ښه نه و او په پټه یې خپل کار کاوه.))

دا بیان او د مناظرې نور اړخونه خوشال په خپله یوه غرا مثنوي کې په ډېر ښه ډول بیان کړي دي. دا مثنوي ټول (۱۲۹) بیتونه لري او تاریخ مرصع ټوله په خپلو پاڼو کې خوندي کړې ده. دلته به ددې مثنوي ځینې بیتونه دمناظرې د ځینو اړخونو د روښانتیا لپاره راوړو:

يو کتاب دی دروېزه سره جوړ کړی
د سوات خلک يې له کل عمله موړ کړی

نامعقول مجهول بيان په کې بې ځايه
په کې بد د سيد وايه يزيد سايه

غه جاهل ملا چې دا کتاب وه کښلی
ما په دا خبرو دی وډېر ښکنځلی

مخامخ يې دا خبرې کړې نمايې
چې ته سکه رافضی يې چې دا وايې

رد بدل ددې خبرې ډېر مذکور شه
دا مذکور په واړه سوات کې مشهور شه

هغه نيم ملا روان شو و ميانور ته
خس خشاک يې سره ولوستل تنور ته

سرې لمبې د ميا په کور شوې بلې
نه وه څوک چې يې اوبه کړې باندې تلې

ملايان شيخان يې واړه سره ټول کړل
ګډ يې واړه په دا وير په دا آشول کړل

ميا نور وې چې اخون زموږ امام دی
درست مخزن پرې نازل شوی په الهام دی

په مخزن باندې چې بد وايي کافر دی
د کافر قتل په شرح معتبر دی

هر سړی چې په مخزن باندې څه وايي
په دنيا کې تر ساعته به څوک پايي

ملکان شيخان يې واړه سره ټول کړل
په خپل سحر او افسون يې کچ وګول کړل

خوشال خان په دې مثنوي کې وايي چې ددې ملکانو او شيخانو له ډلې څخه يو مياخان، بل ماڼکی او بل سنګر ماپسې راغلل او زه يې په سنګر خټک کې له خوبه پاڅولم او راته يې وويل چې راځه موږ سره لاړ شه او د ميانور ځواب ورکړه، دې سپين ږيرو وويل چې د سوات د ټولو ملايانو همدا پرېکړه ده. خوشال بابا ورته په ځواب کې وايي چې ما د محمد(ص) دين منلی دی، له قرآن پرته بل کتاب نه منم، دروېزه نه کوم امام دی او نه هم مجتهد دی. خپله دروېزه هم يو خام شخص دی، تاسو هم خام ياستئ او د مخزن کتاب هم خام او نيمګړی دی. خو لنډه

دا چې خوشال ددې مشرانو په زیات ټینګار له ځایه پاڅېد او روان شو. بابا وایي:

مـــلا مـــې وتـــړلـــه زه هم ورروان شـوم
یـــک تنهـــا مواجهـــه پـــه ډېـــر خصـــان شـــوم
مخـــامخ و بلـــه کـــېناستـــو پـــــه قـــــهر
پـــه خبـــرو مـــو ښـــکاره کـــړو ســـره زهـــر
مـــلکان شـــیخان عالمـــان واړه ســـره شـــول
د خپل لوري شک یې واخیست مسخره شول
چې بـه مـــا ورتـــه ویـــل کـــــول د مشـــکو
ابلعـــانو بـــــه ویـــــل کـــــول لـــــه پشـــــکو
نـــه یـــې عـــلم، نـــه یـــې عقـــل نـه یې پوهـه
فضـــلیت ورځنـــې لـــرې پـــه ډېـــر کروهـــه

خوشال بابا وايي، کله چې ما او میا مناظره پیل کړه، نو کوم منصف هئیت ولاړ نه و چې وروسته قضاوت وکړي او نتیجه اعلان کړي، د سوات شیخانو اکثره د میا نور پلوي کوله، خو ځرنګه چې ما ته د میا خط او کتابت، املا او انشا او ټوله پوهه معلومه وه نو ځکه مې لاس پرې بر و او بل زه په خپل اقرار کې صادق یم او د همدې صداقت په وجه مې په لوی ذات ډډه لګوله، نو ځکه خو میان نور په خپلو خبرو کې راګیر شو.

شيخ مـــيا نور پـه خپلـه پـه تقرير کې
مـا وده وتـه چـوټ ورکـړی پـه تحريـر کـې
مـا وې تـه لـکه ګيـدړ پـه خم کې شين يې
خـو بيـاهم هغـه ګيـدړ يـې کـه رنګـين يـې
ښـا پېرک غونـدې پـه شـپه پـه هـوا دومې
چـې سبا پـه تـا راځـي هزعيـت مـومي
پـه خطونـو کـې چې ځـان و مـاته ستايې
مـا هـم پېژنـې چې څـوک يـم دا څـه وايـې
خپـل صـفت دې يوسفــزيو وتــه وايـــه
زه دې پېـژنم چې څـه يـې ځـان مـه ستايه

پرمخزن باندې د خوشـال دمانيز اعتراض يو ټکی دا و چې اخوند درويزه قصداً غوښتي د امام حسـين(رض) د شهادت پـه پېښـه کې يزيد ته برائت ورکړي او داسې وښيي، چې ګڼې يزيد نه غوښتل چې امـام حسـين(رض) شهيد کـړای شي، پـه همدې وجه يې هغو اشخاصو ته چې په دې کار يې لاس پورې کړی و ان دمرګ سزا ورکړه. خوشال بابا د اخوند درويزه دا ډول توجيهات او تعبيرات پـه کلکـه ردوي او ځان د پيغمبر(ص) د سـنتو ډېر ټينګ پابند ګڼي، په يوه بله مثنوي کې په همدې اړه وايي:

زه چې چون په اعتقاد کې پاک سني یم
په کندن د رافضي د بیخ کني یم
رافضي یې په داهسې اعتقاد کړم
په درست سوات یې په تکفیر په رفض یاد کړم
د صدیق او د فاروق په عشق کې طاق یم
د عثمان او د حیدر بنده قلماق یم
آل اولاد د پاک رسول واړه منمه
امامان نبیان هم ټول واړه منمه
د یزید پلید په کار باندې لعنت دی
چې د آل سره یې کړی شرارت دی
د بد ذات مکر په علم کې لا بد شي
حبشي چې په مخ خال کیږدي لا بد شي.

لکه څنګه چې د مخه مو یادونه وکړه شیخ میانور مخکې تر دې د مغلو په لمسه په سوات کې پر خوشال د (تکفیر) او (رفض) تورونه پورې کړي وو. خو خوشال دا ټول تورونه بې بنسټه وګڼل، برعکس یې په اخوند درویزه او میانور (یزید) ته په لېوالتیا او هغه ته په برائت ورکولو ګرم وګڼل. خوشال په خپله مناظره کې د مخزن او نورو دیني مسایلو په باب له میانور څخه

پوښتنې وکړې، میانور سم ځواب ونه شو ویلای. خوشال بابا وايي:

الـغرض چې يې خبره کـړه اغازه ډېـر يـې وويـل دخپلـې نيـا لـه نمـازه
بيا يې وستايه نيکه په څو څو رنگه مستمع شـه درست عـالم ورتـه پـه درنگـه
خدای يې وتړلـه ژبه لـه افسونه دا وينـا دده لـه ژبـې شـوه بيرونـه
مونږه کـله وايو دا چې يزيد ښه دی پـه مخـزن کـې دروېـزه سـتايلی نـه دی
بل زمونږ مـخزن نه شعر نه بيـان دی بيـان شـوی نظـم نـه دی پـه بـل شـان دی
که يې گورې درست په شان دصحيفو دی چـې راتلـې بـه لـه اسـمانه لـه هغـو دی
يـو پښتو کلام موزون دی بيان شوی پـه معنـی کـې دگرگـون دی بيـان شـوی

هغه ځای چې د رښتيا مهتاب ښکاره شي دکتـانو تـاروپود پـاره پـاره شـي
د رښـتياو کرامـت لکـه بـاران دی د دروغـو سـحر دوړې د بيابـان دي
چې دده دخولـې نـه دا خـبرې وشوې ته به وايې چې په هر چا اوبه توی شوې
پـوهېدم چې زمـا ستاره وه پـرې غـالبه لـه هيبتـه يـې دا ووتـه لـه ژبـه
که يې بيا کړه دافسون ښـېوه اغـازه سود يې نه و دې ما ژبه شوه پرې سازه
مـا وې بـس دمامقصـود مـراد هـم دادی مـدعي پـه دا خبـرو خـود اگـاه دی
د يزيد ستاينه گورئ په مخزن کـې هم مخزن نه دی د شعر پـه هـر فـن کې
زه هم دا خبره وايـم خلکه خـامـه خـو ديـې وويـل خبـره شـوه تمامـه
چې هـرڅوک پـه دا خبره خبردار شو چـې کينـه وځـي دروغـې طلبگـار شـو
شيخ ميا نور چې خجل ورغی ترکوره په داخپل ويل پښـېمان شـو را شـه گوره

چې د خوشال او ميان نور ترمنځ مناظرې دوام کاوه، د شيخ ميان نور منطق کمزوری کېده، په پای کې ميـان نـور مـات شـو، ددې په خاطر چې ميان نور په سيمه تر دې زيات ونه شرمېږي او

بیا د هغه پلویان، دیني او علمي مناظره په جنګ او جګړه وانه ړوي خو خوشال پر میانور بل هېڅ شرط کېښود ، یوازې دا شرط یې پرې کېښود چې نوره به د مغلو پلوي نه کوي، میان نور هم دا شرط قبول کړ، خو په زړه کې یې بیا هم مغل پالنه وه او تر پایه خپلې دې ژمنې ته وفادار پاتې نه شو.

خوشال بابا نه یوازې د شیخ میانور له مناظرې سره مخامخ شوی، بلکې د ژوندانه په اوږدو کې یې ډېر ځله له ډېرو کم علمه او کم سواده ملایانو او شیخانو سره مقابله او مناظره کړې چې دده ګڼ ادبي اثار د دې مناظرو او ځوابونو ښکارندوی دي. کله چې موږ په دینپوهنه کې د خوشال بابا ژورلیدونو ، علمي او اصولي دریځ ته متوجه شو نو خوشال مو د ستر اسلامپوه، اسلامپال او متبحر فقهي په توګه په ذهن کې انځور شي.

# "شگه حاکم"
# او د شگه حاکم په هیله

وایي اجتماعي مسایل د ساینسي هغو په شان نه دي، چیگ
په وضع شویو فورمولونو حل شي، خو کله چیگ سؤیگ
ولسي پوهیگ ، متلونو، د روزکگار تجربو او د پوهانو پخو
خبرو ته وککوري، نو له داسیگ کره خبرو او پخو تجربو سره
مخامخیگاِي چیگ د ساینسي فورمولونو په شان د اجتماعي
ستونزو د غوخگولو لپاره کار کوي. زما په اند استاد الفت د
افغاني تگولنیگ هغه لیکوال دی، چیگ یوه شگه اجتماعي
طبیب او حکیم ورته ویلای شو. الفت د افغاني تگولنیگ د
ژوندانه بیگلابیگلو ناخوالو ته متوجه شوی، هغه بیگ په
أیگر دقت خگیگؤلي او د درملنیگ نسخه بیگ ورته
وؤاندیگ کؤیگ ده. د استاد الفت د علاج نسخیگ ،
أیگریگ پیسیگ او أیگر لکگشگتونه نه غواؤي؛ دهریگ
ناروغة لپاره بیگ په خپله تگولنه کیگ درمل په ککوته
کؤي، د ده د نسخیگ تطبیق یوازیگ فکر او سوچ غواؤي،
نور خگه نه غواؤي. الفت د یویگ تگولنیگ د سلو مرضونو

دوا یوازیگ دا کگنگي چیگ ((شگه حاکم)) پریگ حکومت وکؤي، د ((شگه حاکم)) پـه اؤه کیگدی شـي، خلکـو سـره مختلف تصورات وي، خو د الفت په نظر تـر تگولـو شگه حاکم ((قانون او عدالت)) دی. د الفت په نظر که په هره تگولنه کیگ قـانون او عـدالت واکمـن شـو ، نـو د تگولنیـگ أیگریـگ ناخوالیـگ پریـگ اواریگـدی شـي. حگکـه چیـگ قـانون او عدالت نه چا نه رشوت اخلي ، نه د چا لیاز کوي، نه پر چا ظلم کوي، نه د چا سفارش کوي، نه چا سره کینه کوي، نه نفسـي خواهشات لري، نه خپل پیگژني او نه هم پردی. نو د داسیگ یویگ وسیلیگ په واکمنة سره د هر چا حقوق خوند ي کیگاِي او خگوک د چا پر حق تیگریگ نه شي کولای. دلته به د استاد الفت د نثر دا وؤه، خو له مانا أکه تگوتگه کتگ متگ راوؤو او بیا به خپلیگ خبریگ پریگ وغحگوو.

## شگه حاکم

هغه چیگ نه نفس لري ، نه نفسي خواهشات.
نه ییگ په زؤه کیگ أار شته ، نه طمع.
نه له موقوفة ویگریگاِي، نه د ترفیع پروا لري.
نه رشوت اخلي نه تنخوا.

نه له چا سره عناد لري، نه د چا مراعت کوي.
نه د چا مخ ګګوري، نه د چا خګتګ.
نه زورور پیګژني، نه غریب.
نه خګوک ییګ خپل دي او نه پردي.
نه چا ته خاندي، نه چا ته وچولی تریووي.
پوهیګإئ د ا حاکم خګوک دی؟
هو ! قانون او عدالت.

استاد الفت د بشري تګولنیګ د سوکالة لپاره قانون او عدالت تر تګولو شګه وسیله ګګنګلیګ، چیګ هیګخګ بل خګیز ورسره د پرتلیګ وؤ نه دی، وګګورئ لوی خګشګتن تعالی (ج) ،د بشر د لارشګوونیګ لپاره وخت پر وخت خپل پیغمبران رالیګإلي او هر پیغمبر خلکو ته د خدای (ج) د نظام او قانون د تطبیق سپارشګتنه کؤیګ ده. اسماني ادیان د بشر د ژوندانه د مهارولو ، نیګکمرغه کولو او هوساینیګ لپاره ستر قوانین دي. اکثره بشري قوانین د همدیګ قوانینو په رنګا کیګ وضع شوي دي، بشر د خپل ژوند د هر اؤخ د انتظام لپاره بیلابیګل قوانین وضع کؤي، خو وضعي قوانینو تر هغه وخته دوام موندلی او تطبیق شوي چیګ عدالت ورسره ملګګری وي. هغه وضعي قوانین چیګ ظلم او استبداد ورسره

ملکګري وو او د عدالت خګرک په کیګ نه وو ، أیګر لنأ عمر لرلای دی او بیا هم د أیګر سخت فشار او لکګشګت په وسیله په أیګره سختة تطبیق شوي، خو کله چیګ زور ختم شوی قوانین هم له منحګه تللي دي، خو استاد الفت د شګه او تلپاتي حاکمیت لپاره له ( قانون ) سره ( عدالت ) هم ملکګری کوي، د الفت په نظر (عدالت) د (قانون) ژوند تظمینوي او دواؤه بیا د خلکو ژوند. د تګولنپوهانو په نظر له قانون پرته یوه تګولنه اصلاً ژوند نه شي کولای، د طبیعت تګول نظام د یوه نظم یا قانون تابع دی، که د یویګ شیګبیګ لپاره هم د کائینانو او حګمکیګ په نظم یا قانون کیګ کګأوأي را منحګته شي نو دا نؤة به د سترکګو په رپ کیګ تباه شي، دغسیګ د بشري ژوند هره خوا چیګ محاسبه کؤو که له قانون خګخه خالي شوه، نو له سختیګ کګأوأة او انارشة سره به مخامخ شي، حتی د حګنکګله د حګناورو تر منحګ هم یو أول قانون حاکم دی.
استاد الفت د بشري ژوند دغه ستر ارزشګت او ضرورت په أیګرو لنأو تګکو بیان کؤی دی. پوهانو حتی د قانون پر تعریف غتګیګ غتګیګ لیکنیګ کؤي او کتابونه ییګ پریګ لیکلي، خو استاد الفت بیا په داسیګ یوه لنأ اعجازي کلام کیګ قانون او عدالت تعریف کؤي او اهمیت ییګ ورته

خگرکگند کؤی چیگ سؤی ییگ په یو وار لوستلو د مانا تل ته کوزیگدی شي.

۱- نفس او نفسي خواهشات.

۲- أآر او طمع

۳- موقوفي او ترفیع

۴- رشوت او تنخوا

۵- عناد او مراعات

۶- مخ او خگتگ

۷- زورور او غریب

۸- خپل او پردي

په بشري تگولنه کیگ چیگ هر خگوک د پورتنیو مفاهیمو پر وؤاندیگ حگان تگینکگ نه کؤي، یا د نفسي خواهشاتو تابع شي یا له چا خگخه نامشروع طمع وکؤي، یا وأآر شي، یا د خپل حگان د موقف د لوؤاوي لپاره کار وکؤي او یا رشوت ته زؤه شگه کؤي، یا چا سره عناد او مراعات وکؤي، چا ته مخ شگکاره کؤي او چا ته خگتگ، زورور او غریب ته په یوه سترکگه ونه کگوري او له خپل واک و حگواک خگخه د خپل او پردي پر وؤاندیگ نا سمه کگتگه پورته کؤي، نو طبیعي خبره ده چیگ عدالت نه تطبیقیؤي او تگولنه له توازنه وحگي، کله چیگ په تگولنه کیگ بحران رامنحگته شي، نو د

تګولنیګ تګول وکګؤي ورسره زیانمنیګاِي او هیګچا تـه هم، بیـګ ضـرره کګتګـه نـه رسـیګاِي. نـو اسـتاد الفـت پـه تګولنـه کیـګ د بحرانونو د تګولیز حل پـه خاطر وایي چیـګ تګولنه باید

د ((شګه حاکم )) له خوا کنتګرول شي او دا ((شګه حاکم)) دده پـه نظـر ( قـانون او عـدالت ) دی، د مانیزیـګ شـګکلا تـر خګنکـګ د اسـتاد الفـت ددیـګ نثـر لفظـي شـګکلا هـم د زیاتیګ ستاینیګ وؤ ده.

دا نثـر پـه حقیقـت کیـګ تګولیـګ یـوولس جملیـګ لـري، چیـګ تګولیـګ تامیـګ جملیـګ دي. داسـیګ تامیـګ جملیګ چیګ اوإدیګ نه دي، هره جمله پـه حقیقت کیـګ لـه دوو برخو جوؤه ده، دویمه برخه که خګه هم پـر (نـه) باندیګ پیلیګاِي، خو له لومؤة برخیګ سره ارتباط کیـګ ده، د تاکیـد او خوند لپاره شګه پیوستون شګیي، په دیګ نثر کیګ لکـه د لنأیګ کیسیګ په شان شګه تلوسه موجوده ده ، سؤی پـه پیـل کیـګ نـه پوهیګاِي چیـګ (( شـګه حـاکم )) یانیـګ خګـه؟ او

خگوک به وي؟ خو دا تلوسه او غوتګه لکه د لنأيګ کيسيګ د اوج په شان په وروستة برخه کيګ خلاصيګإي.

پوهيګإئ ! دا حاکم خګوک دی؟

هو ! قانون او عدالت.

# په پښتو لرغونو ادبیاتو کې شعري فورمونه

کله چې موږ په پښتو لرغونو ادبیاتو کې د شعري فورمونو په اړه خبرې کوو، نو پر دوو ډولو ادبیاتو له بحث سره مخامېږو: ۱- پښتو ګړني یا شفاهي ادبیات ۲- پښتو لیکني یا تحریري ادبیات.

۱-پښتو ګړني ادبیات: په پښتو ګړنیو ادبیاتو کې ګڼ شمېر شعري فورمونه شته، خو ددې شعرونو د زمان او مکان حد او برید ټاکل اسانه کار نه دی، د اکثرو صاحب او شاعر معلوم نه دی. ددې تر څنګ په خپله د ګړنۍ شاعرۍ شعري فورمونه هم د لیکنۍ شاعرۍ په انډول لږ مشخص (ثابت) او کوټلي دي. یوازې لنډۍ په پښتو ګړني ادب کې مشخص او ثابت شکل لري، نور اکثره یې دیوې یا څو مسرو، اوازونو یا اهنګ په تغیر او تبدیل سره خپل شکل بدلوي، خودابدلون دومره هم نه دی چې یو شعري فورم یا شکل له بل سره منطبق یا مدغم شي او یو بل سره یې توپیر ونه شي، په پښتو ګړنۍ شاعرۍ کې لنډۍ، کاکړۍ، نارې یا غړونه، لنډکۍ، سروکي، فالونه، د ښادۍ

سندرې، نکلونه، چاربيتې يا بګتۍ او ځينې نور راځي، له لنډۍ پرته نور اکثره شکلونه بيا خپل منځ کې نور نور شکلونه يا لږ تر لږه د بڼې تغير لري. لنډۍ يوازېنی شعري فورم دی، چې د اهنګ، د څپو د شمېر او د خج له پلوه يو ټاکلی شکل او چوکاټ لري، چې که يو هم پوره نه وي، لنډۍ نه جوړېږي. د اهنګ له پلوه د لنډۍ وروستی توری(غږ) بايد حتماً يو غږن اواز (واول) وي، په واولونو کې هم يو مشخص واول (ه=a) چې په پښتو کې د ګردې هې (ه) په نوم نومول شوی او زور(zwar) يې هم بولي. د يادونې وړ ده چې تر زور(a) دمخه اواز هم بايد يو متحرک غږ وي چې د دې دواړو غږونو له يو ځای کېدو څخه يو منظم اهنګ يا ريتم رامنځته کېږي، چې مسرې ته رنګ او خوند ورکوي او د وينا پر وخت د سړي خوله پرېږده کېږي. د لنډيو بل خصوصيت دا دی چې هره څلورمه مسره يې خجنه ده، يانې د هرې مسرې پر څلورمې څپې بايد فشار يا خج راشي، چې اصل اهنګ پوره کړي، البته د پښتو شاعرۍ پر هرشعري فورم، خج درې څپې وروسته واقع کېږي، خو د لنډۍ توپير له نورو شعري فورمونو سره دادی چې په نورو شعرونو کې کېدی شي خج د مسرې پر لومړۍ، دويمې، درېيمې، يا څلورمې مسرې راشي او تر هغې درې څپې وروسته څپه خجنه شي، يانې درې څپې وروسته څلورمه څپه خجنه کېږي، خو په لنډيو

کې د لومړۍ مسرې څلورمه څپه خجنه وي او بیا نور تر پایه همدا قاعده تعقیبوي او دا فورمول پر ټولو لنډیو یو شان د تطبیق وړ دی.

د څپو او د مسرو شمېر له مخې هم لنډۍ واحده قاعده لري، لنډۍ دوه مسرې لري، چې لومړۍ یې نهه څپې او دویمه یې دیارلس څپې ده، د لنډۍ د دواړو مسرو د څپو ټولیز شمېر دوه ویشتو (۲۲) څپو ته رسېږي، له نورو ټولو پښتو شعري فورمونو سره د لنډۍ توپیر دادی چې ددې د مسرو او څپو شمېر مطلق او غوڅ دی او تر هغو زیاتېدی او کمېدی نه شي، خو په نورو شعرونوکې دا مطلقیت عام نه دی، څرنګه چې د پښتو ګړنۍ شاعرۍ د اکثرو شعري فورمونو وخت او شاعر معلوم نه دی، چې ایا په لرغونې دورې پورې اړه نیسي او که نه؟ او بل د ټولو ګړنیو شعري فورمونو شننه او څېړنه یوه اوږده بحث ته اړتیا لري، نو دا بحث بل وخت ته پرېږدو او اوس راځو د خپل بحث دویمې برخې، د پښتو لیکنۍ شاعرۍ فورمونو او هغه هم د لرغونې دورې شعري شکلونو ته !

د پښتو لیکنۍ شاعرۍ لومړۍ لاسته راغلې بېلګه همغه د امیر کروړ یو شعر دی، چې د محتوا له مخې ویاړنه او د فورم له مخې داسې ډول شعري یا منظوم فورم دی چې نه په بشپړ ډول د پښتو ولسي شاعرۍ له پخو بېلګو یا شعري شکلونو لکه

چاربیتو، بدلو، بګتیو، لوبو او کسرونو سره ورته والی ولري او نه هم له عربي ادبیاتو او نورو ژبو څخه له راغلو شعري فورمونو لکه غزل، قصیده، مخمس، مسدس او نورو سره ورته وي، د څېړونکو په نظر دا شعر یا نظم زړو اریایي سندرو ته ورته یو شعر دی، د ځینو څېړونکو په نظر دا شعر د زړو اریایي سندرو او پښتو ولسي سندرو تر منځ د اتصال یوه کړۍ ګڼل کېږي.

د امیر کروړ شعر اته بنده لري چې په هر بند کې یې درې مسرې دي، د سر بند درېیمه مسره یې بیا پر دوو برخو وېشل کېږي، په حقیقت کې دوه مسرې لري، چې دواړه مقفي دي، او د پورتنیو دوه بیتونو د مسرو قافیه تعقیبوي د بند وروستۍ مسرې دویمه برخه بیا له نورو بندونو سره هم تکرارېږي:

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هند وسند پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نستـــه له ما اتل نستـــه

په پورتنیو اتو بندونو کې د لومړي او شپږم بند د مسرو د څپو شمېر سره برابر(څوارلس څوارلس) څپې دی، او درېیمه مسره چې یوه برخه یې تکرار ده شپږ شپږ سپلابه دي، د نورو شپږو بندونو دمسرو شمېر (پنځه لس پنځه لس) څپې دی او ټول واړه بیتونه یې اووه څپې دي، چې په دې ډول یې په خپل

منځ کې یو منظم اهنګ ټینګ کړی دی، سر بېره پر دې د اول،دویم، درېیم، شپږم او اووم بندونو مسرې د قافیې تر څنګ ردیفونه هم لري او نور بیتونه یې یوازې په قافیو سمبال دي. دا اهنګ له پلوه دا شعر د پښتو له نورو ولسي شعرونو سره چې تر امیر کروړ وروسته لاس ته راغلي، یو شان دی، یانې د پښتو ژبې له ځانګړي اهنګ سره سمون خوري. د تاریخي قدامت له مخې بل لاسته راغلی شعر هغه شعر دی چې ابو هاشم ابن الزید سروانی له خوا پښتو ته ژباړل شوی،او په درېیمې هجري پېړۍ پورې اړه لري، دا شعر اصلاً د ابن خلدون و چې (ابي الینا ) مشهورو ، د بغداد اوسېدونکی او په دواړو سترګو ړوند و ، دا شعر د فورم له مخې غزل دی، خو محتوا یې اخلاقي مسایل دي، چې د درهم د ستاینې په بڼه خلکو ته وړاندې شوی، که څه هم ځینو څېړونکو دا غزل نه دی ګڼلای او قطعه یې بللې خو کله چې مور د شعر عربي متن ته مراجعه کوو ، هلته د غزل د فورم له معمول تعریف سره سمون خوري، پښتو متن ته یې که هم وګورو د غزل فورم څرګندوي. سره له دې چې لومړی بیت یې مقفی دی؛( وینه او درهمونه ) په کې د قافیې کلمې دي، خو د قافیې پوهنې له مخې د دواړو قافیو تر منځ یوازې یو مشترک توری(ه=a ) دی او تر دې د مخه توري حرکت هم تغیر لري، نو( سسته او چسته قافیه یې سره یو ځای

کړي)، نو ځکه سږي ته په پيل کې د اهنګ له پلوه پوره پوره منطبق نه بريښي، دا کېدی شي د ژباړې ستونزه هم وي، له نظم نه نظم ته ژباړه څه اسانه خبره نه ده، نه يوازې په مطلع کې، بلکې په نورو بيتونو کې هم د قافيو هماهنګي سل په سلو کې منطبقه نه ده، د ابو هاشم ابن الزيد السروانيي له خوا د ابن خلدون دا ژباړل شوی غزل اووه بيتونه لري، چې د سر او پای بيتونه يې دا دي:

ژبه هم ښه ويناکاندي چې يې وينه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه
درهم ژبه ده که څوک ژبور کېږي
ده وسله که څوک پرې کاندي قتالونه

**د بېټ نيکه مناجات:** په پښتو لرغوني شاعرۍ کې يو مطرح شو د بېټ نيکه مناجات دي، چې ټول دوه بنده لري او سربېره پر دې يو بل بيت هم لري، چې د کسر يا تکرار په بڼه ورسره ويل کېږي، د دواړو بندونو د مسرو شمېر يې سره برابر،(شپږ شپږ) مسرې يا درې درې بيتونه دي د او ټول شعر يا نظم د مسرو د څپو شمېر هم سره مساوي دی، (اووه اووه) دی، د محتوا له مخې دا شعر ديني مناجات دي، خود فورم له مخې مثنوي ته ورته ښکاري، ځکه چې هر بيت يې په خپل منځ کې مقفی دی، خو دا چې هر درې بيته وروسته يو بيت د تکرار يا کسر په بڼه لوېږي، له مثنوي څخه خپله بڼه بدلوي، مانا دا چې

د مثنوي هغه فورم چې له عربي څخه پښتو ته راغلی هغه شان نه دی، نو ځکه ویلای شو چې دا هم د پښتو ولسي شاعرۍ په اهنګ پخوانیو اریایي سندرو ته ورته دی، چې په پښتو ولسي شاعرۍ کې نور داسې شعرونه هم شته، د بېت نیکه مناجات:

لویه خدایه لویه خدایه ستا په مینه په هر ځایه
غر ولاړ دی درناوي کې ټوله ژوي په زاري کې
دلتــــه دي دغــــرو لمنې زموږ کېږدۍ په کې پلنې

دا وګړي ډېر کړې خدایه
لویه خدایه لویــه خدایه

همداسې بل بند

**د شیخ اسمعیل شعرونه:** د شیخ اسمعیل دوه شعرونه زموږ لاس ته راغلي دي. د شیخ اسمعیل یو پارکی:

تېښته وکړه له ابلیسه         چې ابلیس لعین ښکاره شي

دا ټول پنځه بیتونه لري چې محتوا یې له شیطان څخه د انسان د ژغورنې په اړه ده، د شکل له پلوه غزل ته ورته ده، خو یوازې په دې توپیر چې د سر بیت یې مقفی نه دی. بل نظم یې چې د خرښبون بېلتون ته ځانګړی شوی او بیا خرښبون په نظم د هغه غبرګون ښودلای، دواړه له عربي څخه د راغلیو فورمونو په چوکاټ کې نه راځي او د پښتو شاعرۍ د فورمونو رنګ پرې

غالب دی خو دې سره سره سل په سلو کې په کوم ځانګړي
چوکاټ کې نه ځايږي.

کـه يون دی يون دی　　　مخکې بيلتون دی
لــه کـسي غره څخه　　　ځـي خـرښبون دی....

څلور څلور مسرې د يوه بند په شکل يو ځای شوي دي.
د خرښبون نظم:

بېلتانه ناره مې وسوه په کور باندې
نه پوهېږم چې به څه وي پېښ په وړاندې
لـه خپلوانـو بـه بېلېـږم پـه سـرو سـترګو
دواړه سـترګې مـې پـه وينـو دي ژړانـدې

د شـيخ رضـی لـودي او نصـر لـودي نظمونـه: دا دواړه نظمونه چې د يوې ليکلې مشاعرې بڼه لري، د فورم لـه مخې غزل ته ورته دي، خو داسې غزل چې مطلع ونه لري، يانې بې مطلع غزل، نور نو د غزل فورم ټول قواعد پرې تطبېقېږي، خو يوازې دومره توپير لري چې د سر لومړۍ مسره يې بې قافيې ده او د نورو مسرو قافيـه د لـومړي بيت د دويمې مسـرې قافيـه تعقيبوي.

د شیخ رضی لودي د نظم څو بیتونه:

د الحاد په لور دې ترپلل ګروه دې زموږ وکوراوه
موږ رونـلې پـه زیـارنـه تـا پـه تـوراوه پـه تور او

او د هـغـه پـه ځواب کې د نصرلودي دا نظم:

د الــحاد په تور تورن سوم زه لرغون خو ملحد نه یم
زما دښنه هسې تور راکړي کـه مـلحد یـم د دښنه یـم

**په لرغوني ادب کې د قصیدي فورم:** پښـتو ادب تـه د قصیدي فورم له عربي ژبې څخه راغلی دی، چې لـومړی ېېلګـه یې د شیخ اسعد سوري لاسته راغلې قصیده ده. د شیـخ اسعد سوري قصیدې له پوخوالي داسې بربښي چې پښتوادب کې به تـردې دمخـه هـم زیـاتې قصـیدې پنځېـدلي او پـه خپلـه شـیخ اسعد سـوري بـه هـم ډېرې زیـاتې قصـیدي لیکلـې وي، چـې د قصیدو د پخوالي دې معراج ته رسېدلی دی، خو څرنګه چې تـر ده دمخه او خپله دده نورې قصیدې عملاً په لاس کې نه شته، نو همدا لاسته راغلې قصیده پـه پښـتوادب کې لرغـوني قصیده ګڼلای شو، قصـیده هغـه ډول شعري یـا نظمـي فـورم دی، چې د سر بیت یې مقفی وي، ردیف په کې اختیاري دی، قافیـه پـه کې حتمـي ده، د نـورو بیتونـو د دویمـو مسـرو قافیـه یـې د لـومړي مقفی بیت قافیـه تعقیبوي، د بیتونو شـمېر یې لـه پنځـه لسـو څخه تر سوو بیتونو پورې اټکل شوی دی، د قصـیدې د معمول

تعریف له مخې قصیده درې برخې لري، چې د پیل برخې ته یې تشبیب یا تغزل وایي او معمولاً د طبیعت ستاینه په کې کېږي، دویمې برخې ته یې اصلي موضوع وایي چې د ممدوح ستاینه په کې کېږي او دریمه برخه یې دعائیه ده. د شیخ اسعد قصیده چې د محمد سوري (د سوریانو واکمن زنداني کېدو او وفات) ته ځانګړې شوې د محتوا له مخې یوه دردونکې ویرنه ده.

دا قصیده د محمد سوري د مرګ رنه انځورګري کوي او پر سړي باندې ډېر تاثیر ښندي، دا قصیده ټوله ۴۴ بیتونه لري چې د قصیدې له معمول تعریف سره سم ټول اړخونه یې رانغاړلي دي، د سر ، منځ او پای څو بیتونه یې دا دي،:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار
هر غاټول چې په بیدیا غوړېده وکا
ریژوي یې پاڼې کاندي تار په تار

د منځ بیتونه:

زموږ پر زړونو دې نن بیا یو غشی وویشت
ودې ژوبلله په دې غشي هزار
پر سوریو باندي ویر پرېوت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړی په بل دار

د پای څو بیتونه:

سخ پــــه تـــا ای مــحمـد ه د غــور لمـــر وې
پـــه نــړۍ بــه نـــه وي ستـــا د عـــدل ســـار
که سوري دې پر ننګ وير کاندي ويرمن سول
هـــم بـــه ويـــاړي ســـتا پـــه نوم ستا په ټبار
په جـنت کـې دې وه تـــون زمـــوږ وا کـــمنه
هــــم پـــر تـــا دې وي ډ يـــر لور د غـــفـار

د دې قصيدې هندسي شکل په دې ډول دی:

+____________________

قافيه +____________________

____________________

+____________________

____________________

ترپايه +____________________

**د ښکارندوی غوري قصيده:** بله مهمه قصيده زموږ په لرغوني ادب کې د ښکارندوی غوري قصيده ده، چې پر هند يې د سلطان شهاب الدين غوري د فتوحاتو په تعريف کې ويلې او

د محتوا له مخې یوه ستاینه بلل کېږي. دا قصیده ټوله (۴۵)
بیتونه لري او د قصیدې له معمول تعریف سره سم درې برخې
تشبیت یا تغزل اصلي موضوع او د عائیه لري، دا قصیده هم
لکه د شیخ اسعد سوري دهغې په شان په قافیه پای مومي او
ردیف نه لري. د سر، منځ او پای څو بیتونه یې دا دي:

د پسرلي ښکلو ونکي بیا کړه سینګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه، لمنې شنې شوې
طیلسان زمردي واغوسته غرونه

دمنځ بیتونه:

په زابل چې د بري پر نیلي سپور سي
په لاهور یې د مېړانې ګوزارونه
د اسلام د دین شهاب دنړۍ لمر دی
تورستان یې کړه رڼا په جهادونه

د پای بیتونه:

په رڼا اوسه ته تل د دین شهابه
نوم دې تل وه پر دریځ په نمزدکونه
ستا په زېرمه دې خاوند لوی ښتن وي

موږ خو ستا په نامه یونه ځو چې یونه.

د شیخ اسعد سوري او د ښکارندوی غوري قصیدې دوا ړه د انځورګرۍ او د طبیعت د مناظرو د ترسیم او د پېښو د واقعي ثبت له مخې داسې لوړې قصیدې دي چې تر اوسه یې پښتو ادب کې سارې نه شته.

په لرغوني پښتو ادب کې غزل: سره له دې چې غزل ته ورته ځینې نظمونه په پښتو ادب کې تر اتمې هجري پېړۍ د مخه هم لیدل کېږي، خو پښتو ادب کې په منظم ډول غزل د اتمې هجري پېړۍ دویمه نیمايي کې، اکبر زمینداروي پیل کړی دی.

اکبر زمینداوری د دیوان خاوند و چې څو پاڼې یې استاد حبیبي ته لاس ته ورغلي دي. په دې لاسته راغلو پاڼو کې دوه غزلونه هم خوندي دي، چې د هنر، هغه وخت او شکلي سکښت له مخې ډېر اوچت غزلونه ګڼل کېږي، چې دلته یې یو څو بیتونه د بېلګې په توګه را اخلو:

د خپل ځان له حیرانیه څه ویل کړم
د عشق ویر به تل په خپله پټول کړم
ما مدام لکه بورا پر ګلو کشت کړ
اوس به څم په سر تور سر فراق د ګل کړم...

او وروستی بیت:

د بېلتون له ویره ژاړم اوښکې وینې
زه اکبر په خپل اشنا د سرښندل کړم

دا غزل پنځه بیتونه لري چې ( ویل، پټول، ښندل او... ) یې د قافیې کلمې دي او ( کړم کړم ) یې ردیف دی. د بیتونو دمسرو دڅپو شمېر یې دولس دولس څپې دی او د ټولو مسرو د څپو شمېر یې سره مساوي دی، مطلع او مقطع چې د غزل یوه ځانګړتیا ده، دواړه په کې خوندي دي. دمحتوا له مخې هم له غزل سره پوره منطبق دی، ځکه چې موضوع یې تغزلي ده.

**په لرغوني ادب کې مثنوي:** په پښتو ادب کې د پوره مثنوي او پوره غزل عمر سره تقریباً مساوي دي، دواړه شعري فورمونه د اکبر زمینداوري د دیوان په هغو پاڼو کې لیدل کېږي چې د استاد حبیبي لاس ته ورغلې وې، په دې پاڼو کې د زمینداوري دوه مثنوي هم خوندي دي.

مثنوي هغه شعري فورم دی چې له عربي څخه پښتو ته راغلی دی، ځانګړتیا یې داده چې هر بیت یې ځانته ځانګړې

قافیه لري، یانې دوه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي، ردیف په هر بیت کې اختیاري دی، کېدی شي ځینې بیتونه ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري.

د هر بیت د مسرو شمېر یې په خپل منځ کې مساوي وي، خو د ټولو بیتونو د مسرو د څپو شمېر یې د یوې یا دوو څپو په شمېر توپیر او بدلون موندلای شي.

البته تر اکبر زمینداوري د مخه مثنوي ته ورته شعرونه وو، خو بشپړه مثنوي، ده لیکلې ده.

دلته یې د یوې مثنوي څو بیتونه را اخلو:

زه عاشق یم یار هم نیز     نور څه نه لرو تمیز
یو پر بله عاشقان یو     په خپل عشق کې صادقان یو
یو په بل پسې رنځور یو     چې نږدې نه یو مهجور یو

په پورته بیتونو کې اول بیت ردیف نه لري او دوه نور یې لري. د مثنوي فورم په دې ډول دی:

a______________
a ______________
b ____________     ردیف اختیاري دی
b______________
c __________
c __________

تر اکبر زمیند اوري وروسته د زرغون نورزي ساقي نامه:

ساقي راشه پیاله راکړه ـــــ مرور یار مې پخلا کړه

د زرغونې کاکړ د بوستان ژباړه:

اوربدلې مې قصه ده ـــــ چې تر شاتو هم خوږه ده

د دوست محمد کاکړ غرښتنامه:

له نیکانو روایت دی ـــــ هسې توګه حکایت دی

ټول د مثنوي په فورم کې دي.

**په لرغونې ادب کې رباعي:-** تر غزل او مثنوي وروسته بل هغه شعري فورم چې له عربي څخه پښتو ته راغلی هغه (رباعي) ده چې دا فورم د (خلیل خان نیازي) او (سلطان بهلول لودي) له خوا په خپل منځ کې په ویل شویو شعرونو کې ګورو، رباعي هغه شعري فورم دی چې څلور مسرې لري، لومړۍ، دویمه او څلورمه مسره یې په خپل منځ کې هم قافیه وي او دویمه مسره یې له قافیې څخه ازاده وي. ردیف په کې اختیاري دی او د څپو شمېر یې معمولاً مساوي وي.

خړې وربځې ژاړي له پاسه ـــــ کویله غږ کا ببلتون له لاسه

یه هغه لوني ګوهر په خول ستا ـــــ دا مرحبا کا ستا زموږ مواسه

د سلطان بهلول لودي رباعي:

ملک به زرغون کړم په ورکړه راسه ـــ ګوره اوربځې د داد له پاسه

خول مې د عدل په درو روڼ دی ـــ جهان به زیب مومي زما له لاسه

د رباعي عام شکل دا دی:

a___________

a _________     ردیف اختیاری دی.

_________

a__________

## په لرغوني ادب کې د نورو شاعرانو شعرونه:

د نورو پاتې شاعرانو شعرونه اکثره د پښتو ولسي شاعرۍ په فورمونو کې راځي او همغه اریایي خصوصیت لري، چې د پښتو له ځانګړي اهنګ سره مطابقت کوي. دا شعرونه د پښتو ولسي شاعرۍ له ثابتو شعري فورمونو سره هم سلو په سلو کې منطبق نه دي او کېدی شي هر یو جلا جلا وڅېړل شي، خو په لرغوني ادب کې له عربي څخه راغلي ډېر مطرح شعري فورمونه، قصیده، غزل، مثنوي او رباعي دي چې هر یوه ته پر خپل ځای اشاره وشوه.

# د استاد روهي له نظره
# د خوشال اخلاقي ايډيال

د خوشال بابا په باب تر او سه پورې په سلګونو څه چې په زرګونو لیکنې شوي دي، د خوشال بابا په اړه د مستقلو اثارو شمېر هم لسګونو عنوانو ته رسېږي، د خوشال په باب څېړنې په لومړي ګام کې پر دوو کټګوريو وېشل کېدی شي، لومړی هغه څېړنې چې د بهرنیو پوهانو له خوا ترسره شوي او دويم هغه ليکنې دي چې د کورنيو څېړونکو او پوهانو له خوا تر سره شوي دي، ددې څېړنو او لیکنو یوه برخه دودیزه بڼه لري چې په ټولنه کې د خپل وخت د دوديزو علومو او تعاملاتو په نتيجه کې يې خوشال مطالعه کړی او څېړلی دی، د ليکنو دويمه برخه هغه ده چې خوشال يې د معاصرو علومو، کره کتنې او څېړنو په نتيجه کې له هر ډول سياسي، ټولنيزو، قومي او اخلاقي تمايلاتو پرته، د نوې پوهې او د تحقيق او تحليل د نويو ميتودونو په رڼا کې څېړلای او تحليل کړی دی، زموږ د هېواد له دغو معاصرو پوهانو څخه يو هم د هېواد ډېر ځيرمن ليکوال، څېړونکی او کره کتونکی کانديد اکاډمسين سرمحقق محمد صديق روهي دی، چې په څو مقالو کې يې خوشال بابا په ناپيیلي (بې طرفانه) ډول څېړلای دی.

استاد محمد صدیق د ادبپوهنې په لړ کې په خپل مهم اثر (ادبي څېړنې) کې د خوشال په باب څلور بېلابېلې لیکنې: ((د خوشال د ښوونې او روزنې فلسفه، د خوشال خټک سوات نامه د ټولنیزو اصلاحاتو هنداره، ، د خوشال اخلاقي ایډیال او خوشال د اخلاقي ایډیال په حیث او د خوشال په اثارو کې د مضمون او شکل تنوع)) چاپ کړي چې هره یوه د خوشال پېژندنې د مطالعاتو په لړ کې د خپل ځانګړي او جلا ارزښت لرونکې دي، استاد روهي پر نو موړو لیکنو کې سربېره د خوشال پر کلیاتو (د کابل چاپ) هم یوه ارزښتمنه سریزه لیکلې، دغه راز د هېواد په ځینو علمي مجلو کې یې هم د خوشال په اړه علمي او تحلیلي لیکنې راغلي دي.

((د خوشال اخلاقي ایډیال)) په نامه د استاد روهي یو مستقل اثر هم چاپ شوی دی، چې همدا تېرې څېړنې په خپله لمن کې رانغاړي.

اوس راځو دې ته چې د استاد روهي دا لیکنې ولې د زیات ارزښت وړ دي؟

استاد روهي د هغو پوهانو له جملې څخه دی، چې عصري زده کړې یې کړې وې، د ښوونې او روزنې په برخه کې یې ماسټري درلوده او په ادبپوهنه کې د زیاتې مطالعې خاوند و.

په کره کتنه او ادبپوهنه کې يې يو ډېر مهم اثر (ادبي څېړنې) ليکلی دی، استاد روهي د زيات علم او حلم خاوند و او همدا دوه عنصره يې په اکثرو ليکنو په تېره بيا په کره کتنه کې زيات ليدل کېږي، روهي صاحب په کره کتنه کې د هېڅ ډول احساساتو تر اغېز لاندې نه دی راغلی او هر څه يې چې شنلي نو هغه يې د دليل او منطق په مټ واضح کړي دي، د خوشال په برخه کې هم استاد روهي د ليکنو چلند همدا ډول دی، استاد روهي سره له دې چې يوه ښه افغان او پښتون و، خو هېڅکله هم د خوشال پېژندنې په برخه کې د پښتونولۍ او افغانيت تر اغېز لاندې نه دی راغلی.

استاد روهي چې کله د خوشال ايډيال مطالعه کوي او پر هغه بحث کوي نو تر ټولو دمخه اخلاقي ايډيال تعريفوي، کله چې د يو شي تعريف مشخص شي، نو بيا د هغه شي پر ماهيت ښه پوهېدلای شو، استاد روهي وايي: ((اخلاقي ايډيال د کرکټرونو د هغو مثبتو اوصافو مجموعې ته ويل کېږي، چې د اخلاقي کمال د موډل ښه ولري، اخلاقي ايډيال د يوې طبقې اجتماعي، اقتصادي شرايط منعکسوي او په اجتماعي ايډيال سره توافق پيدا کوي.)) استاد روهي د همدې پورتني فورمول او تعريف له مخې د خوشال د اخلاقي ايډيال په باب وايي: (( څرنګه چې خوشال د فيوډاليزم د اجتماعي- اقتصادي

فورماسیون محصول دی نو دا ډېره طبعي ښکاري، چې د خوشال اخلاقي ایډیال دې په یوه قومي مشر یا اشرافي شخصیت کې متبلور شي.))

د استاد روهي له نظره خپله د خوشال په فکر د هغه اخلاقي ایډیال همهغه دی، چې ده په خپل اثر(دستارنامه) کې ښودلی دی او هغه ته (د دستار سړی) وایي، د استاد روهي په نظر دا ډېر مناسب نوم دی، ځکه چې له یوې خوا په پښتني قبیلو کې دا دود دی کله چې یو نوی قومي مشر یا خان د خلکو له خوا وټاکل شي، د هغه پر سر پګړۍ یا پټکی تړي او د پټکي تړلو وروسته خلک هغه ته مبارکي ورکوي، له بلې خوا، په پښتنو کې پټکی یا دستار د عـزت او وقـار سمبول دی، استاد روهي زیاتوي: د اخلاقي موډل لپاره خوشال (شل خصلتونه او شل هنرونه ټاکلي دي) که چېرې په یوه شخص کې دغه واړه هنرونه موجود وي، نو هغه ته د اخلاقي کمال یوه نمونه یا اخلاقي ایډیال ویلای شو، استاد روهي زیاتوي: که موږ د اخلاقي ایډیال په برخه کې د خوشال (دستارنامه) د (بلو تارک) او (کویتلیان) له اثارو سره پرتله کړو ډېر ټکي به په کې مشترک پیدا کړو، نو ځکه استاد روهي وایي، چې د خوشال اخلاقي ایډیال (دستارنامه) دیوه اخلاقي ایډیال په حیث نوې څېره نه ده ، استا د روهي وایي: د خوشال موډل د لرغوني

یونان موډل (چې د مرییتوب د دورې څرګندوی دی) نه، بلکې د رومیانو موډل دی، رومیان په علم او فلسفه کې ژور نه ځي، بلکې علم له عمل سره نږدې کوي.

استاد روهي وايي: ((د خصوص د مقولې له نظره باید وویل شي، چې د خوشال اخلاقي ایډیال د پښتني چاپېریال کلتوري خصوصیات منعکسوي، په دې ځای کې د دې ټکي یادونه هم ضروري ده ، چې د خوشال د موډل د پوره څېړنې لپاره باید یوازې پر (دستارنامه) باندې تکیه ونه شي، استاد روهي سره له دې چې د خوشال اخلاقي ایډیال د پښتني چاپېریال څرګندوی بولي، خو بیا هم یادونه کوي، چې د دې ایډیال لپاره چې خوشال کوم معیارونه ټاکلي، هغه د پښتني چاپېریال تر کلتور او مذهبي حدودو اوړي، استاد روهي په دې نظر دی، چې د خوشال ایډیال د کرکټر په لحاظ عمومي او خصوصي اوصاف لري؛ عمومي اوصاف یې د ټولنې د ټولو افرادو لپاره لازم دي، لکه (د اولاد تربیت ، علم ، شجاعت ، سخاوت، راستي، خوشخویي، همت، غیرت او نور... ) خصوصي اوصاف یې صرف د دستار سړي ته ضروري دي، لکه تادیب د خشم وخصم، د ملک د انتظام په عمومي اوصافو کې یې ځینې هنرونه او خصلتونه تر زیاتې اندازې د ( دستار سړي) سره شباهت لري، لکه د ځان معرفت، اسپ تازي،

تجارت، موسيقي، شطرنج، نقاشي، عدل او انصاف، عفو وکرم، مشورت او نور...

استاد روهي د خوشال اخلاقي ايډيال د نړۍ د يو شمېر نورو پوهانو له اخلاقي ايډيال سره پرتله کوي او هغو لارو چارو ته ګوته نيسي، چې يو شخص پرې دې معيار ته رسېدلای شي، استاد روهي هغو دوارو معيارونو او لارو ته اشاره کوي، چې اخلاقي ايډيال پرې جوړېږي، خو پرته له دې چې غوځ حکم وکړي، قضاوت لوستونکو ته پرېږدي، استاد رورهي وايي: د خوشال د ښوونې او روزنې موډل چې په دستارنامه کې راغلی دی، د لوړې طبقې ايډيال دی، ليکن دی د (اپلاتون) او ( ارسطو ) په شان دغه ايډيال په کومې خاصې طبقې پورې نه منحصروي، (ارسطو ) په صراحت ادعا کوي، چې غلامان فطرتاً غلامان پيدا شوي دي، دوی له مقدماتي زده کړې او سواد څخه زيات څه نه شي زده کولای، خوشال البته پر وراثت باندې تکيه کوي، ليکن دا وراثت طبقاتي نه ګڼي، د خوشال په نظر نه يوازې هنرونه د زده کړې له لارې لاس ته راځي، بلکې دی خصلتونه هم کسبي بولي، دی وايي: (( امير لره بويه چې ځان په شرع اراسته کا، بيا د ولايت ظاهري، د سياست هنرونه، خويونه، خصلتونه زده کا. )) سره له دې چې پورته بحث کې استاد روهي د کوم نظر پلوي نه کوي، خو د متن له قرينې څخه

داسې ښکاري چې استاد د يوه ټولنپوه، ښوونپوه او کره کتونکي په توګه د خوشال نظر تائيدوي، خوشال د اخلاقي ايډيال يا شخصيت د جوړېدو لپاره ټول شرايط کسبي بللي، چې هر څوک يې تر لاسه کولای شي، خو په دې چاره کې ارث او د شخص خپل زيار او زحمت هم دخيل ګڼي او دا يې هم په ګوته کړې، چې هر څوک دا معيارونه پوره کړي، نو بيا (د دستار سړی) ترې جوړېدی شي او د (دستار سړی) طبعاً هغه مقام دی چې بيا د ټولې ټولنې په لوړې يا اولې طبقې پورې اړه پيدا کوي او دا ځکه چې همدا شخص دی ، چې د ټولنې د مشرۍ وړتيا پيدا کوي، نو بايد د ټولنې په راس کې واقع شي.

د ارسطو نظريه چې پر طبقاتي بنسټ ولاړه ده، تر ټولو د مخه د سقراط له علمي نظرياتو سره چې وايي: انسان د تحول په حال کې دی او د اصلاح وړ دی، متضاده ده، د ښوونې او روزنې اوسنۍ ميتودولوژي هم دا حکم نه کوي چې د ټيټې طبقې خلک دې د لوړو زده کړو قابليت ونه لري او يا دې ترې لوی شخصيتونه نه شي جوړېدلای، خوشال البته د شخصيت په جوړونه کې ارثيت ځکه دخيل بولي، چې دا د شخصيت جوړونې منشا ده، اوسنۍ اروا پوهنه هم دا تائيدوي، چې د انسان د شخصيت وده د نطفې له تشکل څخه راپيلېږي، محيطي او بيا اجتماعي شرايط په کې اساسي نقش لري.

استاد روهي د خوشال د اخلاقي ايډيال په ليکنه کې دې نتيجې ته رسېدلی دی، چې د خوشال د ښوونې او روزنې موډل د اخلاقي ايډيال د جوړونې لپاره مناسب دی، استاد روهي د (دستارنامې) د معيارونو له مخې د اخلاقي ايډيال لپاره تر ټولو غوره ، ښه او عملي بېلګه په خپله (خوشال) بولي، چې د دستارنامې اکثره معيارونه (شل هنرونه او شل خصلتونه) يې په وجود کې ليدل کېږي، نو موږ هم د استاد روهي د تحليل له مخې دې نتيجې ته رسېږو چې د خوشال د اخلاقي ايډيال يوه عملي بېلګه په خپله لوی خان خوشال خان دی او بس.

# ((شاهنامهٔ احمد شاه ابدالي))

## ویاؤنه ده که حماسه؟

((شاهنامه احمد شاه ابدالي)) د حافظ کگل محمد مرغزي منظوم داستاني اثر دی، چیگ په هند کیگ ییگ د احمد شاه بابا د فتوحاتو او بریاوو په باب لیکلی دی. دا اثر لومؤی حگل پر **۱۹۲۵**م کال د یو زر تگوکو په شمیگر د مشتاق احمد مشتاق په تدوین او د مولانا عبدالقادر په((پیگژند ککلو)) چاپ شوی دی.

د مدون په وینا ددیگ اثر اصلي نوم((شاهنامه احمدیه))و، خو دوی ورته حگکه د ((شاهنامه احمد شاه ابدالي)) نوم غوره کؤ چیگ دیگ نوم ورسره أیگر اؤخ لکگاوه.

**حافظ کگل محمد مرغزي**، د مرغز د کلي او سیگدونکی و او د شاهنامیگ له متن خگخه د اسیگ شگکاري چیگ دی د احمد شاه بابا د وخت سؤی او په جنکگونو کیگ د هغه له لشگکرو سره ملکگری و، دده په خپله وینا ددیگ شاهنامیگ د لیکلو حکم هم ورته پخپله د بادشاه (احمد شاه بابا) له خوا شوی و، دی وایي:

چیـــــگ فرمـــــان د شهریـــــارو
پـــــه زیـــــبا شگکلـــــی کگفـــــتارو

چیگ حافظ دیگ شاهنامه که
په جهان دیگ دا نامه که
شاهنامه دیگ که رنکگین
جوؤ زیبا در ثمین
پکیگ حال دیگ د جهان وي
شگه کگنجو نه دیگ عیان وي
شه مذکور دیگ که د جنکگ
چیگ پریگ صاف شي دزؤه زنکگ
د بادشاه دیگ حال بیان که
دا چیگ سیر ییگ په جهان که
د احمد شاه دُر دوران
پکیگ حال میگ کؤ بیان.

حافظ مرغزي دا کتاب پر یو زرشپإ او یا یم (۱۰۷۲) هگ ق کال بشپؤ کؤی دی. د کتاب په پای کیگ د دیگ خبریگ یادونه کوي او وایي چیگ دا شاهنامه ییگ د پشگتنو لپاره بشپؤه کؤیگ ده:

د پشگتنو د پاره یاره ماخواري وکؤه بسیاره
که شگگه وکؤیگ پریگ نظر ته به شیگر سیگ د کشور
چیگ زرسل وو اویا کاله سن د هجر زما لاله
شپإ ته نور کؤه سره ضم چیگ تاریخ نه شي تریگ کم

زمــا عـمـر دی پـنـحـگـوس        خگــه لـــه مـــا وشـو افـســوس

پـه پـورتنیو خگو بیتونو کیگ ددیگ اثـر(شاهنامیگ ) د لیکلو وجه او علت خگرکگند شول، خو اوس راحگو دیگتـه چیگ دا اثر د ادبي اثارو په کومو معنوي او شکلي أولونو یا انواعو کیگ حسابیگإي؟ اکثره شاهنامیگ چیگ لیکل شوي په هغوی کیگ تــاریخي کیســیگ، د پاچایــانو اتلــولي، تــوره او میگؤانــه او جنککــي پیگشــگیگ بیــان شــوي، نــو حگکــه خــو اکثــره شاهنامیگ په حماسو او یا هم په حماسي اثارو کیگ شمیگرل کیگإي اوس چیگ زموإ تر بحث لاندیگ موضوع د ((احمد شاه ابدالي شاهنامه ) ) ده، پـه دیـگ کیـگ لـه خگـو پـو شـگتنو سـره مخامخیگإو او یا هم خگو پو شگتنو ته باید حگواب ورکؤو، تر تگولو د مخه کیگدی شي دا پو شگتنیگ مطرح شي چیگ ایا دا شاهنامه ویاؤنه ده که حماسه؟ یو حکایتي داستان دی که حماسي نظم یا شعر؟ د کوم یو معنوي أول خصوصیات په کیگ زیات دي؟ د فـورم لـه مخیـگ پـه کـوم أول نظمونـو کیـگ راحگـي؟ ایـا د حماسیگ د لیکلو لپاره مناسب فورم دی که نه؟ ایا نورو شاعرانو هم د شاهنامیگ د لیکنیگ لپاره له دیگ أول فورم خگخه کار اخیستی که نه؟ او که اخیستی ییگ وي وجه ییگ خگه ده؟ خو ددیـگ تگولـو پو شـگتنو پـه منحـگ کیـگ دوه پو شـگتنیگ چیگ تر نورو زیاتیگ مطرح دي دادي چیگ دا شاهنامه ، ویاؤنه

ده که حماسه؟ ددیګ لپاره چیګ دیګ پو شګتنو ته معقول او مناسب حګوابونه پیدا کؤو، شګه به دا وي چیګ د حماسیګ پیګژندنیګ د اصولو او معیارونو په رنګا کیګ د ا اثر مطالعه او تحلیل کؤو:

((حماسه په ادبي أولونو کیګ أیګر لرغوني أول دی په حماسه کیګ تر تاریخي دورانه وؤاندیګ زمانیګ وقایع راغلي وي او په حقیقت کیګ د لومؤنیو زمانو کګزارش دی حماسه په هغه دوران کیګ د یوه ملت ارمانونه بیانوي چیګ تاریخ، اسطوره، خیال او حقیقت تګول پکیګ سره کګأیګإي)).

حګینیګ کسان کله کله په ادبي خګیګؤنو کیګ د حماسیګ، حماسي شعر او ویاؤنیګ (فخرییګ) تر منحګ توپیر نه کوي، په داسیګ حال کیګ چیګ دا دریګ واؤه جلا جلا معنوي أولونه دي، توپیر سره لري((حماسه د ادبیاتو په موضوعي یا معنوي أولونو کیګ یو أول دی، چیګ د یو ملت، قوم، قبیلیګ یا شخص د میګؤانیګ او توریګ کیسیګ او جنګګي کارنامیګ په حکایتي أول بیانوي، هر أول جنګګي او حماسي اشعار حماسه نه شي جوؤولای، که خګه هم حماسه له حماسي او جنګګي اشعارو خګخه جوؤیګإي، خو هر حماسي شعر یا ویاؤنه حماسه نه ده.د حماسیګ یو شرط دادی چیګ پیګشګیګ په کیګ په داستاني أول بیان شویګ وي)) خو په حماسي شعر او یا هم ویاؤنه کیګ دا

شرط حتمي نه دی. یو رزمي شعر کیگدی شي هیگخگ اتل ونه لري او شاعر خپله خلک د رزم او جنکگ خوا ته راوبولي او په ویاؤنه کیگ هم یو شاعر کولای شي د خپل حگان پر بریاوو او یا هم د خپل تگبر پر بریاوو او لاسته راوؤونو وویاؤي، لکه د امیر کروؤ شعر چیگ د خپل حگان د اتلولیو په باب ویاؤ کوي، په حماسي شعر او ویاؤنه کیگ مهمه نه ده چیگ شعر دیگ داستاني او یا حکایتي بنگه ولري. په ویاؤنه یا حماسیگ کیگ دا هم مهمه نه ده، چیگ یو شاعر دیگ لرغونیگ زمانیگ ته لاؤ شي او د هغو پیگشگو بیان دیگ وکؤي، خو حماسه کیگ بیا د لرغونو پیگشگو بیان هم راحگي. د دوکتور سیروس سمیسار په نظر: ((حماسه قدیمترینه او مهمترینه ادبي نوع ده چیگ د قبل التاریخ زمانیگ تاریخ بیانوي.))

((خگنکگه چیگ حماسیگ دأیگرو لرغونو او لومؤیو وختونو خاطریگ دي، نو په دیگ حساب د شفاهي کیسو او نکلونو په شکل سینه په سینه رانقل شوي او تر هغیگ چیگ په یوه زماني مقطع کیگ بییگ خگوک لیکلو ته پیدا شوي او لیکلي بییگ دي.))

د ادبپوهانو په نظر د نؤة په حماسو کیگ حگینیگ داسیگ خصوصیات شته چیگ هغه د نؤة په اکثرو حماسو کیگ مشترک دي او حگینیگ داسیگ حگانکگؤتیاویگ هم شته چیگ هغه د

همغيگ يويگ ژبيگ په حماسو پوريگ محدوديگ دي پشگتو حماسيگ د نؤة د حماسو د عامو حگانکگؤنو تر خگنکگ حگينيگ د اسيگ حگانکگؤتياويگ هم لري چيگ هغه د نؤة په نورو حماسو کيگ نه تر ستر کگو کيگږي، دا حگانکگؤتياويگ د پشگتنو د عام کلتور تابع دي او له همديگ کلتوري، قومي، قبيله يي تعاملاتو بيگ ا لهام اخيستی دی.

دا أول خصوصيات بيا د نؤة د نورو ژبو په حماسو کيگ نه تر ستر کگو کيگږي او يا هم لا تر ستر کگو کيگږي، اوس راحگو ديگته چيگ د حماسيگ د عامو خصوصياتو له جمليگ خگخه کوم خصوصيات تر زياته او کوم خصوصيات تر کمه بريده پر (احمد شاهي شاهناميگ ) د تطبيق وؤدي؟

١- د حماسيگ په عامو حگانکگؤتياوو کيگ يوه دا ده چيگ ((د جنکگ، بهادرة، ميگؤانيگ، پهلوانة او شهسوارة کيسيگ په کيگ راغلي وي ))

د پورتني معيار له مخيگ که موږ (احمد شاهي شاهنامه) ارزوو، نو په ديگ معيار خو پوره حگکه ده چيگ د احمد شاه بابا په شمول د هغه د لشگکرو د بيگلابيگلو لشگکر مشرانو د توريگ، بهادرة او جنکگي اتلوليو کيسيگ په کيگ بيان شوي دي.

مثلاً د شالامار باغ د جنکگ داستان داسيگ بيانوي:

شګه ځګوانان دیګ شي تیار  ازمــوده د جنګــګ پــه کـــار
پــه دا لـــور د شـــالامـار        چیــګ ازبــک هــم د حــصار
د راوي پـــه دا کګفتـــار        د قرغـــــز ځګوانــــان تیـــار

۲-د حماسیګ یوه بله ځګانکګؤنه دا ده چیګ حیوانات په کیګ ستر نقش لري، حتی کله کله دا نقش أیګره اخلاقي بنګه هم لري، په دیګ شاهنامه کیګ هم د آسانو او فیلانو یادونه شویګ او جنګګ کیګ د هغوی رول په کګوته شوی او خپلیګ لشګکریګ ییګ له بازانو سره تشبه کؤي، خو لکه د نورو حماسو په شان حیوانات په دیګ اثر کیګ هغه رول نه لري لکه په نورو حماسو کیګ چیګ خارق العاده رول لري.

۳- د حماسو یوه ځګانکګؤنه دا ده چیګ اتلان په کیګ له هیولاوو او وحشتناکو حیواناتو سره مقابله کوي.

په احمد شاهي شاهنامه کیګ سره له دیګ چیګ وحشتناکو حیواناتو سره د انسانانو تن په تن جګګؤیګ کیسیګ نه دي راغلي، خو په جګګؤه کیګ أیګر ځګایه د جنګګي وسیلو په توګګه د حیواناتو یادونیګ راغلي، خو د دیګ پر ځګای د خپلو لشګکرو د اتلانو أیګر توصیف شوی او د حماسیګ هغه بله خوا ییګ پوره کؤیګ چیګ تر حده زیاته مبالغه په کیګ وي، لکه غلو او اغراق، مثلاً له درانو لشګکرو خګخه د صمد خان یادونه کوي

چيګ د خپل ورور (شفيق) په مرګګ ييګ سينه کباب وه، خو بيا ييګ هم پر د شګمن سختيګ حمليګ کوليګ او هغوی ييګ تار و مار کؤل او يا هم د نورو جنګګيالیو يادونه

**۴**- په حماسه کيګ ياد شوي بوتګي، ونيګ او ميګويګ زياتره جادويي او خارق العاده خصوصيات لري.

د حافظ کګل محمد مرغزي په اثر (احمد شاهي شاهنامه) کيګ سره له ديګ چيګ د حماسيګ کګنګ شميګر خصوصيات لري، خو د ونو، بوتګو او ميګوو د داسيګ کوميګ خاصيګ خارق العاده پيګشګيګ کيسه يا داستان په کيګ نه دی راغلی چيګ د سؤي پام حګان ته واؤوي.

**۵**- د حماسو اتلان معمولاً ما فوق الطبيعي انسانان شګودل کيګإي.

په ديګ شاهنامه کيګ انسانان ما فوق الطبيعي انسانان نه دي شګودل شوي، خو د هر جنګګ د داستان اتل طبعاً تر عادي انسانانو لوؤ شګودل شوی دی. خو دا لوؤتيا دومره نه ده چيګ افسانه يي بريد ته ورسيګإي.

**۶**- د حماسو د اتلانو کارونه اکثره خارق العاده وي او د منطق په تله نه تلل کيګإي.

د مرغزي په احمد شاهي شاهنامه کيګ د اتلانو کارونه د منطق له معياره دومره لريګ نه دي خو داسيګ هم نه دي چيګ سل په

سلو کیګ دیګ له منطق سره برابر شي، د فرعي اتلانو رول هم له عادي منطقه وحګي او هغه مهال چیګ د جنکګ کوم حالاتوو او سیاسي تاریخونو ثبت کؤي، تر هغو معیارونو لوؤ دي.

۷- د حماسو اتلان د خپل ژوند په برخه کیګ له خپل یو ضد قهرمان سره مخامخیګاِي.

په دیګ منظوم داستان کیګ طبعاً قهرمانان له خپل ضد سره مخامخ شوي، خو په دیګ شاهنامه کیګ مرکزي اتل احمد شابابا دی چیګ فتوحات د هغه په امر تر سره کیګاِي، خو دی په مستقیم أول له خپل کوم ضد اتل سره نه مخامخیګاِي او نه په دیګ داستان کیګ دده د معادل کوم اتل یادونه شویګ ده، البته د احمد شاه بابا د لشګکرو قومندانان له خپلو معادلو قومندانانو سره مخامخیګاِي او هغوی ته ماتیګ ورکوي لکه د احمد شاه بابا د لشګکرو قومندانان حاجي جمال، صمد خان او نور چیګ د هندوستان د لشګکرو له حګینو قومندانانو لکه منو، خسرو، شهنواز او نورو سره مخامخیګاِي او له یو وزیر سره تن په تن جکګؤه کوي، حاجي جمال چیګ د درانو لشګکرو مشر دی په دیګ اثر کیګ راغلي چیګ عسکر بیګ د مستو خوني فیلانو په شان د دشګمن پر لشګکر حملیګ کولیګ، په دیګ جکګؤه کیګ د هندوستان د وزیر پر سر د توپ ګګولة لګګیګاِي او زیګر وزیر کیګاِي، دیګ جنکګ کیګ چیګ د هند کوم لشګکر راغلی و هغه د درانو له خوا

تګـول زیګـر وزبـر شـو. د همـد یګ جنګـګ پـه خـاطر کلـه چیـګ احمد شاه بابا د سر هند پر لوري د تګګ نیت وکؤ نو د جنګګ تـدبیر بیګ ونیو:

چیــګ تــدبیر وشــه د جنګـــګ
تمــــام ورک شــــه د زؤه زنګـــــګ
تمــام فــوج پــه جنګـــګ تــیار
ســپین بازونــه شــوه د شـــګکار
لــــــه لاهـــــوره شـــــو روان
پـــــــه دا لار د هندوســـــتان

۸- د حماسو اتلان اکثره په یوه اوإده او خطرناک سفر وحګي.

احمد شـاه بابـا (د احمد شـاهي شـاهنامیګ) د اتـل پـه توګګـه د هندوسـتان پـر یـوه اوإده سـفر وحګـي، د هندوسـتان تـر فتحیـګ وروسته مشهد ته حګي، د مشـهد واکمـن بیـګ تابعدار کیګإي او بیـا نیشـاپور تـه مخـه کـوي، هلتـه لـه یـوه سـخت ژمـي سـره مخامخیګإي، خو دی په خپـل تـدبیر مخکیـګ تـر دیـګ چیـګ د ژمي یخني بیګ لشګکریګ تباه کؤي، له نیشاپور خګخه لشـګکر کندهار ته لیګإي او له مرکګه ژغورل کیګإي، دا ژمـی دومـره سـخت و چیګ أیګر کم ژوندي موجودات ور خګخه پاتیګ شول.

۹- د حماسو اتلان أیګریګ کارنامیګ کـوي چیـګ زیـاتره ملي او معنوي ارزشګتونه لري.

په احمد شاهي شاهنامه کيګ هم چيګ د جنګګ کوم داستانونه راغلي هغه اکثره ملي او اسلامي ارزشګتونه لري، ملي ارزشګت ييګ په ديګ کيګ و چيګ د هغه وخت د شاو خوا دولتونو او زورواکو خګخه ييګ خپل هيګواد خوندي کاوه او هغه جنګګونه چيګ دوی په نورو هيګوادونو کيګ کول، که هغه ييګ هلته نه وای کؤي، نو دا جنګګونه به ييګ په خپل هيګواد کيګ کول، د هغه وخت سياسي او نظامي خصوصيات دا وو چيګ هيګچا هم په خپل خګنګګ کيګ مستقل او قوي ګګاونأی نه شو زغملای، که احمد شاه بابا خپل هيګواد غشګتلی او يو موتګی کؤی نه وای او د غليمانو نيتونه او قوتونه ييګ تر هيګواده لريګ خنثی کؤي نه وای، نو جنګګ به د افغانانو په کور کيګ بل شوی وای.

احمد شاه بابا د خپل جنګګي تدبير تر خګنګګ يو سوله دوست، زاهد او صوفي مشر و. د يو مشهور روايت له مخيګ يو وخت ييګ د کندهار شګار د ساتنيګ لپاره دفاعي ديوال شروع کؤ، نو مور ييګ (زرغونيګ انا) ورته وويل چيګ زويه دا خګه کويګ؟ هغه ورته وويل چيګ د شګار د دفاع لپاره ديګوال جوؤوم، هغيګ ورته وويل د شګمن چيګ تر شګاره راغی نو بيا دفاع مانا نه لري، د شګمن بايد له شګاره لريګ له منحګه يوسيګ. ديګ خبريګ د احمد شاه بابا په ذهن کيګ تغير راووست او په هغو سيمو کيګ

خطر ته متوجه شو چیگ خطر تریگ راولاڼویگدلای شو. حگینیگ تنکگ نظره متعصبین د احمد شاه بابا پراخو فتوحاتو ته د کینیگ په سترکگه کگوري، واقعیتونه تحریفوي او وایي چیگ ضرورنه و هغه نوریگ سیمیگ فتح کڼیگ وای، حگینیگ نور بیا حگان د وطن أیگر "خواخوإي "کگنگي او وایي چیگ احمد شاه بابا باید کورنیو اصلاحاتو ته أیگره پاملرنه کڼیگ وای نظر فتوحاتو ته ! خو هغه تاریخپوهان او تگولنپوهان چیگ د احمد شاه بابا د زمانیگ تگولنیز، سیاسي، اقتصادي، پوحگي، مذهبي، کلتوري او نور حالات ورته شگه معلوم دي، هغوی د هغه وخت د سیاسي تگولنیزو تعاملاتو په رنگا کیگ د احمدشاه بابا تدبیر او عمل ته په أیگره درنه سترکگه کگوري او افرین ورته وایي، د دوی د نظرونو د یووالي نتیجه او نچوڼ دا دی چیگ احمدشاه بابا په خپلو فتوحاتو کیگ دا ستر بریالیتوبونه لاسته راوڼل چیگ بیگ په کوردننه بیگلابیگلیگ افغاني قبیلیگ د ملت او مملکت په لوشگي کیگ سره راتگولیگ کڼیگ او دوی ته بیگ د داخلي اختلافونو د را برسیگره کولو فرصت او مجال ورنه کڼ، بل بیگ شاوخوا غلیمان دومره کمزوري کڼل چیگ دده رامنحگته کڼی دولت بیگ أیگر موده له کگواشگه خوندي پاتیگ شو. د احمدشاه بابا د فتوحاتو ملي ارزشگت همدا و چیگ زموإ تگولنیگ ته بیگ درلود، ددیگ تر خگنکگ احمدشاه بابا یو صوفي مشربه او

پر اسلام مین پاچا و، د شاوخوا تګولو مسلمانانو ورخګخه د مرستیګ هیله وه، په همدیګ خاطر د بخارا مسلمان پاچا ورخګخه د تزاریانو له ظلمه د خلاصون غوشګتنه وکؤه، دهند د مسلمانانو مشر شاه ولي الله ورخګخه له مرهتګیانو خګخه د هند د مسلمانانو د خلاصون هیله وکؤه او احمد شاه بابا دا دواؤه کارونه ترسره کؤل، یانیګ احمد شا بابا د اسلام د بري په خاطر هم زیاته اتلولي وشګوده، د ایران پر لوري لشګکرکشي هم په دیګ نیت وه چیګ د ایران د سیاسي او مذهبي نفوذ مخنیوی وکؤي او که چیګریګ ییګ دا کار نه وای کؤی، نو د دیګ احتمال و چیګ ایرانیان د نادرافشار او کګرکګین د وختونو په شان بیا افغانستان د خپل ظلم تر سیوري لاندیګ راولي. تر احمد شاه بابا د مخه دوران تاریخ لیکونکو ته معلوم دی چیګ خګومره ظلم پر دیګ خاوره واکمن و، حافظ کګل محمد مرغزي هم په خپل اثر کیګ تر احمد شاه بابا د مخه د نادر افشار د ظلم کیسه کؤیګ ده او فکر کوم چیګ د همدغه یوه حالت بیان هم کولای شي په دیګ برخه کیګ د معترضینو غرضي پوشګتنو ته یو شګه حګواب شي. مرغزي په احمد شاهي شاهنامه کیګ وایي:

هلاکو صفت عیان شه
نمودار په دا جهان شه
په شکست بلند شه اور

خــلاص تریــگ نــه شــو د چــا کــور
سنــد بیــگ درســت زیگروزبــر کــه
بــیگ بــالینه یــیگ بــستر کـــه
پـــه هـــر مـــلک پـــه هـــر دیـــار
دده ظلـــــــــــم و بسیـــــــــار
خو د نادر افشار تر مرکگ وروسته د احمد شاه بابا په باب وایي:
احــــمد شـــــاه دُر ابــــدار
پــــه جلـــوه شــــه نـــــمودار
چیــگ لبـــاس بیــگ سلـــطاني و
مرصــــع پـــــه خاقانـــــي و
دا جامــــه شــــوه پـــه ده جـــوؤه
د قســمت پــه حگـای کیـگ یــوؤه

۱۰- د حماسو اتلان تن په تن جنکگونو کیگ له بیگلا بیگلو وسلو خگخه کار اخلي لکه نیگزه، خنجر، توره، غشي، لیندة او نور ، د جنکگ په اوزارو کیگ غولونه او فریگب هم شامل دي په احمد شاهي شاهنامه کیگ پر پورته ذکر شویو جنککگي وسایلو سربیگره د جنکگ له عصري وسایلو لکه توپونو خگخه هم کار اخیستل شوی او د سرهند په یوه جککگؤه کیگ دهند یو وزیر د توپ په ککگولة الوزول شوی و، خو جعل، تذویر، فریگب او غولونه

چیگ په اکثرو حماسو کیگ ییگ یادونه راغلیگ ده ، دیگ کیگ هم له دیگ اوزارو خگخه کار اخیستل شوی دی.

په احمد شاهي شاهنامه کیگ یو داستان داسي گ راغلی دی:
کله چیگ احمد شاه بابا ظل سبحاني د لاهور خواته متوجه کیگإي او د هغه حگای د نیولو نیت کوي، نو هلته یو شخص د شاهنواز په نامه چیگ أیگریگ لشگکریگ او جنکگي وسایل لري، احمد شاه بابا ته د مرستیگ وعده ورکوي، خو د احمد شاه بابا لشگکر، بابا ته وویل که شهنواز درغلي وکؤي، نو موإ به بیا خگه وکؤو؟
احمد شاه بابا خپلو لشگکرو ته په حگواب کیگ وویل:

که خلاف که شهنواز
دی به شي په غم کگداز
چیگ اقبال لرم بلند
و هر چا وته خگگر کگند

وروسته شهنواز سره داسیگ فکر پیدا شو ، چیگ د احمد شاه بابا لشگکر کم او بیگ تجربه دی، خزانیگ او وسلیگ نه لري، نو راحگه د جنکگ تیاری ورته ونیسه، کگوندیگ که فتح دیگ نصیب شي، نو هماغه و چیگ د جنکگ تیاری ییگ ونیو.

د شاهنواز کگوره بد قول
پدا قول وکؤه بول
ده ویگ اسباب لرم د جنکگ

نو نواب شهنواز خان هغه راز چیگ تر دیگ وخته ییگ پـه پـرده کیگ ساتلی و ، هغـه راز خگر کگند کؤ او جنکگ تـه ییگ تیاری ونیو ، دا جککگؤه د (شالامار) پـه نامـه یادیگإي، پـه دیگ جککگؤه کیگ شهنواز ماتیگ خوري، لشگکر ییگ تار و مار کیگإي او داحمد شاه بابا لشگکریگ بریالة کیگإي

پـه جککگؤه کیگ د فریگب او درغلـة بلـه بیگلکگـه دا ده کلـه چیگ احمد شاه بابا لـه هند خگخـه کندهار تـه متوجـه کیگإي، د (منو) پـه نوم یو شخص او د هغـه (وزیـر) زوی چیگ پخوا ییگ جنکگ کیگ ماتیگ خوؤلیگ وه، د هند د یو واکمن (خسرو) لـه خوا ورتـه ویل کیگإي، چیگ تا بـه د لاهور حاکم کؤو ، (منو) پـه أیگره خوشالة لاهور ته راغی او غوشگتل ییگ کابل او کندهار تـه هم لاؤ شي. خو دیگ وخت کیگ احمد شاه بابا له هندوستانه د کابل پر لوري خطر ته متوجه کیگإي، نو له کندهاره د هندوستان پـر لـوري حرکت کوي، کله چیگ پنجاب ته داخلیگإي، نو پر د شگمنانو ماتم راحگي، د (منو) لشگکر ماتیگإي ، سره لـه دیگ چیگ (اووه زره) سکان ییگ ملاتؤ تـه راغلي وو ، خو بیا ییگ هم ماتیگ وخوؤه. (منو) چیگ کله د جنکگ حالات ولیدل چیگ تگول پنجاب تباه کیگإي، نو سولیگ تـه لیگوال شو ، نو احمد شاه بابا تـه ییگ د

ایلچي(استازي) پەلاس پیغام راولیگاٍه، احمدشاه بابا دا سوله قبوله کۆه، (منو) ییگ وباشگەاو دیگ سره (منو) زیات خوشاله شو. (منو) د هندوستان د والي پەتوکگەپاتیگ شو، خو (منو) تە ییگ دا وویل کەلەتابعدارة خگخەدیگ سرغؤونەوکۆه، نو بیا بە تگول پنجاب تباه شي.

تردیگ وروسته احمدشاه بابا د مشهد پە فکرکیگ شو ، کله چیگ د (مشهد) پر لوري رهي شو، نو دهغه حگای واکمن (شاه رخ خان) أیگر وارخطا شو او احمدشاه بابا تە ییگ یو استازی ورولیگاٍه او وییگ ویل کەموإ معاف کۆي تردیگ وروستەدا احمد شاه بابا لشگکرو (نیشاپور) تەمخەوکۆه خو دیگ وخت کیگ یو سختژمی راغی، احمدشاه بابا پەدیگ خاطر چیگ پەژمي کیگ ییگ لشگکر تلف نەشي، بیگرتەد کندهار پر لوري وخوحگیگد. دا ژمی أیگر سختو ان تر دیگ چیگ اکثرەژوندي موجودات ییگ تباه کؤل، دیگ کیگ د هند والي(منو) داسیگ فکر وکۆ چیگ د احمد شاه بابا لشگکر پەنیشاپور کیگ ترواورو لاندیگ شو، نو خگەضرورت دی چیگ باج او خراج ورکوم، شگەدا ده چیگ مخالفت ییگ وکۆم، (منو) خپل لشگکر تەهم أیگر فریاد وکۆ، هغو تگولو ورتەأیگریگ لافیگ ووهلیگ چیگ موإ ستا ملاتۆ کوو.

د احمد شاه بابا له خوا (خانجان) ته امر وشو چیگ دیگ جنکگ ته لاؤ شي. د دیگ جنکگ له امله پر لاهور سخته قحطي راغله او خلک أیگر په تنکگ شول، بالاخره د (منو) لشگکرو ماتیگ وخوؤله او (منو) وتشگتیگد، خو بیا بییگ خپله پؤه ومنله او دربار ته په ننواتو راغی، نو شهریار (احمد شاه بابا) هغه وباشگه

د بادشـــاه شـــه دا فرمـــان
چیـــگ ســـردار بـــه شـــي روان
د مـــنو تقصـــیر معـــاف شـــه
کـــه بـــلند تـــر کـــوه قـــاف شـــه
چـــیگ اخـــلاص و د ســـردار
منـــو راغـــی پـــه دربـــار
پـــه خـــلعت د شـــاه ممتاز شـــه
پـــه جـــهان کیـــگ سرفراز شـــه

کله چیگ بیا لاهور د احمد شاه بابا د لشگکرو په لاس فتح شو نو هلته بیگر ته ژوند له سره پیل شو او شگیگر ازي رامنحگته شوه.

چـــیگ فـــارغ شـــو شهریـــار
پـــه رونـــق شـــو تمـــام کـــار
پـــه تـــنظیم راغـــی لاهـــور
کگلـــستان شـــه پـــه هـــر لـــور

دغه راز په دیګ شاهنامه کیګ دجمناترخګنکګ جکګؤه، دشاهجهان- اباد تاراج کیګدل، شاهدریګ ته تکګ، د پاني پت د جنکګ داستان او د نورو جنکګونو بیانونه هم راغلي دي.

له نواب ناصرخان سره د جنکګ داستان هم راغلی دی، سره له دیګ چیګ هغه سره اته زره قزلباش هم ملکګري وو، خو بیا هم افغاني لشګکرو ماتیګ ورکؤه.

۱۱- په حماسیګ او حماسي شاعرة کیګ معمولاً د کلام لفظي شګکلا ته أیګره پاملرنه نه کیګاٍي او د مانا پر انتقال أیګر زور راوؤل کیګاٍي، خو کله کله کلام حګینیګ داسیګ برخیګ هم لري چیګ هنري خوا ییګ هم د پام وؤ وي.

پر احمدشاهي شاهنامه هم همدا معیار تطبقیګاٍي، ددیګ اثر اکثره بیتونه له ژبني پلوه هنري یا لفظي شګکلا نه لري، حګینو حګایونو کیګ وزني ستونزیګ او تیګروتنیګ هم لري، اکثره بیتونه ییګ سپوره او وچ دي، خو حګینیګ بیتونه داسیګ هم دي چیګ هنري جوهر لري او لفظي شګکلا په کیګ شګکاري لکه دا لاندیګ بیتونه:

چیګ وچا ته مخ که غم
وچوي د زؤکګي نم
خګه دی غم کګوره بلا
نه پریګاٍدي د هوش کلا

چیـــگ روان شـــه ستاســـیگ رور
د فـــــنا پـــــه بادشـــــه ســــور
و دانــــا تـــــه دنـــــیا خـــــس ده
پـــه خگـــو ورحگیـــگ د هـــر کـــس ده
نـــــه مظبـــــوط لـــــري بنیــــاد
چـــیگ بنایـــیگ ده پـــــه بـــاد...

پـه احمـد شـاهي شـاهنامه کیـگ حـافظ کگـل محمـد مرغـزي د جنکگ د هر داستان په پیل کیگ بیگلا بیگل مسایل مطرح کؤي، اکثره دیني مسایل، بیا بییگ یوه جنکگي پیگشـگه، پـه پـای کیـگ بییگ خپل لقب یا تخلص (حـافظ) یـاد کؤی ، د حگـان او خپـل شعر ستاینه بییـگ کؤیـگ ده، دا یادونه بیـا بیـا تکـرار شـویگ ده. خگـو بیتونو ته بییگ د بیگلکگیگ په تو کگه وکگورئ:

زمـــا شـــعر تـــه کـــه خگـــوک کگـــوري
د بـــــاران پـــــه دود بـــــه اوري
ســـوؤ مـــزاج بـــه بییـــگ کانـــدي اور
پریـــــگ بـــــه راشـــــي د عشـــــق زور
پـــه مـــزاج بـــه بییـــگ راســـي جـــوش
نـــه بییـــگ عقـــل وي نـــه هـــوش

همدا سیگ أیگر حگایه د خپل شعر ستاینه کوي.

د فورم له پلوه دا منظوم داستان يوه مثنوي ده، چيګ معمولاً د اوإدو حماسو، تاريخي کيسو او يا هم پيګشګو د بيان لپاره کارول کيګإي، فردوسي هم د خپليګ شاهناميګ لپاره له همديګ فورم خګخه کار اخيستی دی.

حافظ کګل محمد مرغزی هم د احمد شاهي شاهناميګ د ليکنيګ لپاره مثنوي فورم حګکه غوره کګؤی چيګ همدا فورم د اوإدو پيګشګو د بيان صلاحيت لري له حګينو برخو او حګايونو پرته نوره دا مثنوي په (۷) خګپو کيګ ويل شويګ ده. لفظي شګکلا په کيګ دومره نه شته، د کلام موضوع ته ييګ د کلام شګکلا په انأول زيات ارزشګت ورکګؤی دی، چيګ دا خصوصيات په نورو حماسو کيګ هم شته پر ديګ حماسه نوريګ خبريګ هم کيګدی شي خو بيا هم که په مجموعي أول خګوک احمد شاهي شاهنامه ارزوي په ديګ اثر کيګ د حماسيګ خصوصيات تر بل هر معنوي أول زيات ليدل کيګإي، البته د يويګ شګيګ حماسيګ تګول خصوصيات پر يويګ حماسيګ هم سل په سلو کيګ نه شي تطبيقيګدلای، عام نظر او حکم دادی چيګ هر هغه اثر چيګ د حماسيګ زيات خصوصيات پوره کګؤي، نو د حماسو په ألـه کيګ شميګرل کيګإي احمد شاهي شاهنامه هم د نورو معنوي أولونو؛ وياؤنيګ او ويرنيګ په انأول د حماسيګ زيات او غالب خصوصيات لري، نو حګکه ييګ حماسه کګنګلای شو.

# په لغمان کې د شولو کر

دا لیکنه چې په انګازه مجله کې چاپ شوې ده، د معلوماتي انشاء یوه بېلګه ده، هغه ځوان لیکوال چې غواړي معلوماتي او تشریحي لیکنې وکړي دا او د بېته ورته لیکنې ورسره مرسته کولای شي. دا لیکنه هنري او ادبي ارزښت نه لري خو د یوې ټاکلې موضوع د سپړنې لارې چارې په ګوته کوي. ځوانو لیکوالو ته د معلوماتي لیکنو د برابرولو په برخه کې یوه بېلګه ګڼل کېدی شي.

د افغانستان په مهمو کرنیزو محصولاتو کې یو هم (شولې) دي چې وریجې ورڅخه لاسته راځي. شولې اکثره په هغو ګرمو سیمو کې کرل کېږي، چې پرېمانه اوبه لري، د شولو کرنه او له هغوی څخه بیا د وریجو لاسته راوړنه یوه اوږده پروسه ده، چې بزګر تر بل هر کرنیز محصول ډېر زیات زیار او زحمت ته اړبا سي. زه دلته غواړم د هېواد له هغو ولایتونو او سیمو څخه چې شولې په کې کرل کېږي او بیا پر وریجو بدلېږي، یوازې په لغمان ولایت کې دا بهیر په ترتیب سره تشریح کړم. په دې لیکنه کې به د شولو د کښت پر څرنګوالي سربېره د شولو او وریجو پر

ډولونو او همدارنګه د وریجو د پخولو پر څو ډولونو هم رڼا واچوو:

۱- د شولو بزغلی: د شولو درشې پر مهال یو معین مقدار شولې (د ځمکې د ضرورت په اندول) بېلېږي او په ځانګړي جوال یا بوجیو کې ساتل کېږي. تر شپږ میاشتني ځنډ وروسته د لمریز کال د ثور میاشتې په لومړیو کې په داسې یوه ځمکه کې چې همدا مهال ورته کولبه شوې، دواله شوې، منډاوو شوې وې او اوبه په کې ډنډ وي، د غنمو د کښت په شان شیندل کېږي، خو په دې تفاوت چې د شولو بزغلي زیات ګڼ شیندل کېږي ان تر دې حده چې نږدې ټوله ځمکه په شولو پوښل کېږي.

۲- د بزغلي د رسېدو وخت: د بزغلي کښت چې د ثور میاشتې په لومړیو لسو ورځو کې ترسره کېږي په عمومي ډول د څلوېښت ورځو په شاوخوا کې موده نیسي او معمولاً د جوزا تر شلمې او یا لږ څه وروسته نېټې پورې رسېږي، په دې کې یو یا دوه ځلې کیمیاوي کود هم ورکوي. د شولو بزغلي وده دا مهال نږدې پینځه ویشت د برش سانتي متره وي.

۳- د شولو د کښت مهال: د جوزا د میاشتې په بهیر کې د شولو د کښت لپاره ټوله ځمکه تیاره شوې وي. مانا دا چې ځمکه لومړی کولبه او بیا دواله شوې وي. په لغمان کې ځمکه لاتر دې وروستیو وختونو پورې اکثره د غویو په واسطه کولبه

کېدله. یوازې په وروستیو دوه درې کلونو کې د غویو د کولبې ترڅنګ د ماشین یا تراکتور په واسطه کولبه هم دود شوې ده، کله چې ځمکې تر کولبې وروسته د جوزا تود لمر وخوړ نو په اصطلاح ټولې ناروغۍ یې له منځه لاړې، د جوزا په وروستۍ لسیزه معمولاً د جوزا تر شلمې نېټې وروسته نهالونه پیلېږي.

**۴- د شولو نهالونه:** د جوزا په وروستیو کې اکثره ځمکې نهال ته تیارې وي، د نهال د تیارې وروستۍ مرحله پر ځمکې د اوبو سورول او تر هغې وروسته، منډاوو دی، منډاوو داسې یوه وسیله ده چې زیاتره د توت له لرګي څخه د نږدې یو متر په عرض او د دوه مترو په اوږدوالي او د نږدې لسو سانتي مترو په پنډوالي جوړېږي، په لاندینۍ برخه کې د لوټو د ماتولو لپاره د اوو یا لسو غاښونو په اندازه غاښونه هم لري، د غویو تر شا تړل کېږي او ډنډ شوی پټی پرې اوارېږي، له منډاوو سره نږدې هم مهال د پټي پولې هم جوړېږي، نوې ختمې پرې اچول کېږي چې دې ته (تپیاري) وایي، تپیاري له پټي سره دا مرسته کوي چې اوبه پکې په دایمي ډول ایسارې کړي، پر کومه ورځ چې پټی منډاوو شو پر همغه مازیګر د بزغلي له پټي څخه بزغلی ایستل کېږي او د لاسي ګېډیو په شان ګېډۍ ګېډۍ تړل کېږي، که چېرې پټی نږدې وي، نو د بزغلي ګېډۍ په لاسونو او که چېرې لرې وي نو په کجاوه کې وړل کېږي او هلته پر همغه

مازیګر په ټاکلي اندازه، په پټې کې وېشل کېږي. د نهال لپاره معمولاً اشرګر، چې په کليوالي اصطلاح ورته (انشرګر) یا انشروالا وايي موجود وي، نهال کې اشریو حتمي کارګډل کېږي، چې د کلي اکثره ځوانان، تنکي ځوانان او سپین ږیري په کې ګډون کوي. د سهار تر لمانځه وروسته نهال شروع کېږي او ضروریې تر غرمې خلاصوي، نهال ټول په لاس کېږي او په ډېر سرعت سره ترسره کېږي، نهالګر په منظم ډول یو د بل ترڅنګ ولاړ وي او تر یوه متر زیاته اندازه ساحه رانغاړي، نهال په ډېر شوق او ذوق پرمخ ځي او د بزغلي هغه ګېډۍ چې مخکې تر مخکې تقسیم شوې وي، پرله پسې خلاصېږي، که کوم پټې کې د بزغلي کمی احساس شي، نو د بزغلي مسول کس چې هغه په نهال کې برخه نه اخلي او پټې ته بزغلي رسوي، د هغه کمی پوره کوي. د سهار د چای تر مهال پورې چې هوا خورا ملایمه وي نهال ښه په درز کې روان وي، سهار اته، اته نیمې بجې په پټې کې د کومې ونې یا انځر تر سیوري لاندې سباناري کې چای او شړومبی حتمي وي او ددې ترڅنګ تازه انځر، مستې، پنېر، د پنېر اوبه او ځینې نور ملحقات هم ورسره مله وي. د تناره پرېمانه ګرمه ډوډۍ پر دسترخوان خوره وي او نهالګر چې خورا اشتاه نیولي وي، په دومره خوند ډوډۍ خوري چې سړی ورته حیرانېږي، تر سباناري وروسته نهال بیا پیلېږي او تر غرمې

دوام کوي، دا مهال نهالګر په خپل منځ کې په لوړ او از يوه نيمه سندره هم وايي، اکثره يو نيم سروکی وايي او يوه يوه لنډۍ يې په منځ کې تاووي. کله کله د دوو کسانو ترمنځ لنډۍ تبادله کېږي او په دې ډول د نهال ګرمي او سختي په خوند سره پايته رسېږي. د غرمې ډوډۍ چې معمولاً يو يا دوه وطني چرګان په کې وي، له نورو ملحقاتو سره ښه مکلفه او خوندوره وي، مستې، شړومبې او ترکاري هم پکې وي، تر غرمې پوره اکثره نهال خلاصېږي، که چېرې يو نيم پټی پاتې وي هغه بيا خپله د نهال خاوند يا بزګر ترسره کوي، اشرګر معمولاً تر غرمې وروسته رخصتېږي. پخوا يو بل دود هم و او هغه دا چې د ځمکې د خاوند له کورنۍ ښځه يا خپله د کورنۍ مشر او يا د هغه زوی به يې د نهال په پای کې د بزغلي په پټي کې ټولو اشرګرو په زور رانيوه او په خټو يې لړه، دا کار يې د خوند او د نهال د ((حسن اختتام)) او يا په اصطلاح د تېر کال لپاره کاوه، خو په وروستيو وختونو کې دا دود له منځه تللی او يا هم ډېر کمزوری شوی، هغه څوک چې په خټو لړل کېده، هغه په دې کار چندان نه خفه کېده او دا يې دود ګاڼه.

**۵**- د شولو د رسېدو مهال: کله چې د جوزا په وروستيو او د سرطان په لومړيو کې نهالونه ختم شي، نو بيا له هماغه پيله د شولو پټي له اوبو ډنډ شي، نو اکثره وخت دا پټي له اوبو ډنډ

وي، د میزان په اواخرو کې شولې په صافېدو شي او په دې بهیر کې یو یا دوه ځله کیمیاوي کود ورته ورکوي؟ په هغو سیمو کې چې پټي شالیزار او د اوبو څه کمی وي، د اوبو پر سر څه ستونزې راولاړېږي، خو په لغمان کې چې د الینګار بهانده او د الیشنګ نیم بهانده سیندونه لري، د اوبو ستونزه د ځینو نورو ولایتونو په انډول کمه ده، په لغمان کې بیا د الیشنګ په انډول په الینګار کې د اوبو ستونزه کمه ده.

د شولو د رسېدو ټوله موده نږدې څلور میاشتې ده، کله چې د عقرب میاشت رابره شي او د عوامو په اصطلاح د عقرب ستوری شولې ووهي، نو شولې په پخېدو شي. د عقرب څو ورځې لاوتې نه وي چې لوونه ګډ شي، په څو ورځو کې ټول لوونه ترسره شي او ټوله سارا (کرونده) سپېره مېره شي.

۲- د وریجو د ایستلو پړاو: د وریجو د رایستلو بهیر څو ستونزمن پړاوونه لري، چې دلته یې په لنډیز سره یادونه کوو:

**الف- د شولو د لمدولو پړاو:** کله چې د شولو غوبل خلاص شي او راشه تیاره شي، شولې راساً هغې لویې ډنډې ته وړل کېږي چې لا تر دې دمخه کنښل شوې وي او داسې بڼه لري چې روانې اوبه پکې داخل او خارج شي، دا شولې اکثره خپله بزګران او یا هم نور هغه اشخاص چې (پایکوټان) ګڼل کېږي، په اجاره اخلي. په لغمان کې معمولاً یو خروار شولې له

څلو ښېښتو تر څلور څلو ښېښتو منو وريجو پورې اخلي او د شولو خاوند ته په پای کې همدا مقدار وريجې ورسپاري.

شولې په عادي ډول له (۱۵-۳۰) ورځو په ډنډ کې پاتې کېږي. که هوا يخه وي شولې نږدې د برش ورځې او که هوا ښه يا نرمه وي، نو د پنځه لسو ورځو په شاوخوا کې پاتې کېږي.

**ب- د شولو پخولو پړاو:** کله چې د شولو لمدولو معين پړاو ترسره شو، نو بيا د شولو پخولو مرحله پيلېږي، شولې په بټۍ کې پخېږي، پخوا به يې په يو ډول ځانګړو مټونو کې پخولې چې هغه خورا سخت کار وو، په هر مټ کې ايله اووه اته منه شولې ځايېدلې. ترمټونو لاندې به يې اوربلوه او تر معين حرارت وروسته به شولې پخېدلې، خو وروسته به يې يو ډول سرخلاصي ديګي کې راوتل چې هغو ته يو ځانګړی ځای ژوروي، ديګی پرې له پاسه ږدي، لاندې ورڅخه اوربلوي او د سون د هغو موادو په واسطه اور بلېږي چې (سيکه) يې ګڼي او په حقيقت کې د وريجو هغه پوټکي دي چې تېر کال له وريجو څخه لاسته راغلي او په همدې نيت يو کال ساتل شوي دي، د بټۍ کار هم د نهال په شان په اشر ترسره کېږي او معمولاً د شپې له خوا وي، که هوا ډېره يخه هم وي کوم تاثير ځکه نه لري، چې د بټۍ کار تول له اور سره وي او داسې وي لکه سړی چې په ژمي کې دننه په نانوايي کې ناست وي. په يوه ساعت کې نږدې

پنځه لس منه شولې پخېدی شي او که اشرګر تکړه وي، تر دې زیاتې هم پخولای شي، مانا دا چې په پنځو ساعتونو کې نږدې یو خرورا شولې پخېدی شي.

**ج- د شولو د وچولو پړاو:** کله چې شولې په بټۍ کې پخې شي تر هغې وروسته یې پر داسې یوه اواره ځمکه اواروي، چې لمر ولري. په لغمان کې عموماً بامونه د شولو د وچولو لپاره کارول کېږي، ځکه چې له کورنیو چرګانو او خطرونو څخه هم خوندي وي. د ورځې دوه یا درې ځله په شولو کې په دې نیت پښه وهل کېږي چې شولې یوه خوا او بله خوا واړوي او لمر ته مخامخ شي. که هوا لمرینه وي نو په پنځه شپږ ورځو کې شولې وچېږي او که اسمان وریځ وي تر دې زیات وخت غواړي.

**د- د پایکو یا ماشین پړاو:** کله چې شولې وچې شي، نو بیا یې پایکو ته وروړي، پایکو کې مخکې تر مخکې نوبت نیول کېږي، پایکو کې په یوه شپه کې تر یوه خروار زیاتې وریجې ایستل کېدی شي. پایکو داسې یو سیستم دی چې د لرګي د یو غټ تیر پواسطه چې (لټ) یې بولي او د لرګي لویې پرې پکې نصب وي، دا پرې د اوبو د انرژۍ یا فشار پواسطه چې له یوې جګې ناوې څخه راشېوه کېږي، تاوېږي، د لټ په تاوېدو سره د پایکو دوه ستنې چې پایې یا څپېړې یې بولي له

ځمکې څخه د دوه مترو په لوړوالي جګېږي او بېرته هر يوه په خپل معين ځای کې چې د يوه متر په اندازه ژور وي او (بغری) يې بولي لګېږي، په همدې بغريو کې د درې يا څلور منو په اندازه وچې شولې پرتې وي او د څپېړو په ګوزار له دې شولو پوټکي بېلېږي او وريجې راڅرګندېږي. بيا دا وريجې د چج پواسطه پاکېږي، ميده او ناپاکې وريجې يوه خوا او پاکې يې بله خوا اچوي، د پايکو د خاوند له خوا پر يوه خروار وريجو يونيم من مزد دی، د يادونې وړ ده چې اوس په ټول لغمان کې ايله که څو د ګوتو په شمار پايکوګانې پاتې وي. په وروستيو کې د اکثرو پايکوګانو ځای نويو عصري ماشينونو نيولای چې د وريجو د را ايستلو کار يې ډېر اسانه کړی دی، خو ماشين بيا د پايکو په انډول زيات مزد اخلي، يانې په يوه خرورا وريجو څلور منه وريجې مزد اخلي. د لغمان خلک وايي چې د پايکو د وريجو په انډول د ماشين وريجې بې خونده دي، ځکه چې ماشين د وريجو غوړ زبېښي او له منځه يې وړي، خو د ماشين ښه والی بيا دا دی چې وريجې يې صفا او ميده په کې کمې وي.

په لغمان کې د شولو ډولونه: په لغمان کې د شولو بېلابېل ډولونه کرل کېږي، چې غټې او مهينې دواړه پکې شاملې دي، په غټو شولو کې بنګلدېشۍ، جاپانۍ، پرګانې او پرملۍ شاملې دي او په مهينو کې سيله، بېسودۍ، باړه يا تورشغه او

پشدی شاملې دي، له پرګانو پرته چې اوس معمولې نه دي، د نورو ټولو شولو کرل یو شان دي، یوازې پرګانې د بزغلي په شان کرل کېږي او نهال نه لري.

د یادونې وړ ده چې غنمې شولې د مهینو هغو په انډول دوه برابره زیاتې خېږي. یو جریب ځمکه له یو نیم خروار څخه تر دوه نیم خروار پورې غنمې شولې کولای شي او مهینې بیا ددې مقدار نیمایي خېږي. د مهینو وریجو قیمت او خوند بیا د غنمو هغو په انډول دوه برابره دی، غنمې او مهینې شولې چې په کوم نامه یادېږي وریجې یې هم په هماغه نامه یادېږي.

۸- په لغمان کې د وریجو پخولو ډولونه: په لغمان کې لکه څنګه چې څو ډوله وریجې دي، دغسې په څو ډوله پخېږي هم، چې په هر ډول کې بیا څو نور ډولونه هم لري، چې د وریجو پخولو بېلابېلې کورنۍ دي، دلته یې څو غټو کورنیو ته اشاره کوو:

**الف- داوګرې کورنۍ:** په لغمان کې د وریجو د پخولو عام ډول همدا اوګره ده، چې سپینه اوګره ګڼل کېږي. په جوش کړو اوبو کې پخېږي او اکثره غنمې وریجې په کې کارېږي. دا په ټول لغمان کې عامه ده او په اصطلاح د لغمانیانو ملي غذا ګڼل کېږي، په پخوانیو وختونو کې به سهار پخېدله خو اوس تر ډېرې زیاتې کچې یوازې غرمه یې پخېږي او ډېره کمه د شپې له

خوا هم پخېږي. سپينه اوګره يوه بله ضميمه هم لري چې هغه يې په اصطلاح کتغ ګڼل کېږي، هر کتغ چې ورسره مل وي د همغه په نامه يادېږي، لکه پيتي او اوګره، مستې او اوګره، شړومبې او اوګره چې (نرۍ) هم ورته وايي، شيدې او اوګره، کورت او اوګره او داسې نور.

**ب- د ناکې کورنۍ:** د اوګرې په کورنۍ کې مو يادونه وکړه چې اوګره ځانته او کتغ يې ځانته وي، بيا د دواړو په نومونو يادېږي، خو اوګره ځانته او کتغ يې ځانته تيارېږي، يو له بله جلا وي او ګډ نه وي، خو د ناکې کورنۍ بيا په ترکيب کې تقريباً همداسې ده خو فرق يې دا دی چې دلته اوګره او کتغ دواړه سره يوځای پخېږي. مانا دا چې اوګره يا وريجې په کتغ کې پخېږي، بل فرق يې دا دی چې پر غټو وريجو سربېره مهينې وريجې هم په کې کارېږي. د ناکو په کورنۍ کې سبوناکه، شړومبې ناکه، پياوه ناکه او سرنجي ناکه مشهورې دي، سرنجي ناکه هغه ډول وريجې يا اوګره ده چې کله له کوچو څخه غوړي وباسي، له هغو څخه شړومبې ته ورته مايع پاتې کېږي، په همدغه مايع کې چې وريجې پخې کړي، يو ډول تريو خوند لري، همدغې ته سرنجي ناکه وايي، سبوناکه په وچو سبو کې پخېږي، شړومبې ناکه په شړومبو کې او پياوه ناکه په بې غوښې پياوه کې چې معمولاً له وچو پيازو جوړه وي.

ج- شوله: په ټول لغمان کې معمولاً يو ډول شوله پخېږي، چې اکثره په غريبو ودونو او خيراتونو کې پخېږي. د غنمو وريجو او ميو يو ګډ ترکيب وي، د شولې نور ډولونه په لغمان کې زيات باب نه دي.

**د - د شکربتې کورنۍ:** شکربته معمولاً له مهينو وريجو پخېږي، په لغمان کې دوه ډوله شکربته باب ده، يو هغه ډول شکربته چې صافې کړې سپينې وريجې تيارې شي اوله پاسه پرې بوره ودوړول شي او بل هغه ډول دی چې له پاسه پرې د ګوړې ميده ګي يانې شکره ودوړول شي، شکربتې لغمان کې اکثره په روژه ماتي او چرګ بانګونو کې پخېږي او کله کله که عاجل مېلمانه پيدا شي او د غوښې د پيدا کېدو امکان کم وي، نو په عاجل ډول ورته شکربته تياره کړي، د لغمان شکربته ډېره مشهوره ده، چې سندرغاړي يې هم ارمان کوي، د تګاب غياث استاذ چې ځان د لغمانيانو خوری بولي، د لغمان د شکربتو ډېر ارمانجن دی او وايي:

نه خو به بيا لغمان ته لاړ شو – نه به هغه شکربتې وخورو مينه

**هـ- پلوونه:** په لغمان کې په کورونو او بازارونو کې معمولاً هغه ډول پلوونه پخېږي چې ډېر عام دي، صافې کړې وريجې (سپين پلو)، سبزي پلو، دمپخ او قابلي پلو، دا ډول پلوونه د لغمان په بازارونو په تېره بيا په مهترلام ښار کې

پخېږي. هر ډول پلو د هېواد د نورو بازارونو په انډول ارزانه دی. په همدې هیله چې د هېواد هر وګړي ته په هر ګوټ کې هر ډول پلوونه ورسېږي، دا لیکنه پایته رسوم.

# پټه خزانه: تر عظیم الشان قرآن وروسته

((پټه خزانه))، په پښتو ادبیاتو کې هغه خورا مهم، تاریخي او ادبي اثر دی، چې په ټولو پښتو اثارو کې پښتنو ته بل هیڅ ادبي اثر دومره منښت، ګرانښت او تقدس نه لري، لکه پټه خزانه. قرآن عظیم الشان چې د ټول بشر د نیکمرغۍ او د ټولو مسلمانانو لپاره تر تصوره پورته جامع خدایي کتاب دی او ټول بشر ته د لمر د رڼا حیثیت لري او پښتانه د قرآن پر تقدس، سپېڅلتیا او روښانتیا تر هر چا زیات باوري او ګروهمن دي، خو که تر قرآن عظیم الشان او څو نورو مذهبي کتابونو وروسته په عامه روښنفکري پښتني ټولنه کې د کوم کتاب د ګرانښت، تقدس او درناوي ارزونه، پرتلنه او تلنه کوو، نو بیا خو هیڅ کتاب هم د (پټې خزانې) مقابله نه شي کولای او نه دې سره د ګرانښت او محبوبیت په تله تلل کېدی شي. د دې ګرانښت علت څه دی؟ ولې ټول ولس ورته د تقدس په سترګه ګوري؟ او بیا هغه ولس چې له ځینو خاصو مذهبي او عقیده یي

ارزښتونو پرته پر بل هیڅ شي په اسانۍ توافق نه کوي، ولې (پټه خزانه) مني؟ ولې يې درناوی کوي؟ ولې پرې متفق دي؟ ولې ترې خوند اخلي؟ او ولې پرې باور کوي، هر کله که مو دا او د بته ورته پوښتنې مطرح کړې او معقول ځوابونه مو ورته پیدا کړل، کېدی شي پر (پټه خزانه) د څو شکمنو ((لیکوالو)) شکونه راته خپله ځواب شي. زه نه غواړم دلته د ځینو نورو ښاغلو لیکوالو په شان د (پټې خزانې) په اړه تاریخي، ژبني، ادبي او کرونولوژیک دلایل راوړم او د هغو لپاره ګڼ شمېر اخځونه د ملاتړ په توګه کتار کړم، یوازې له خپل لید لوري غواړم په عام ډول د پټې خزانې د حقانیت، ماهیت او ارزښت په اړه خپل نظر څرګند کړم:

**د پټې خزانې تاریخي ارزښت:** (پټې خزانې) په حقیقت کې د خپلې ښکلا له امله یو شمېر مخالفین پیدا کړل، ددې مخالفتونو یو غټ علت دا دی چې په (پټه خزانه) کې د جهان پهلوان امیر کروړ سوري یو شعر (ویاړنه) راغلی، دا شعر د تاریخي قدامت له مخې (۱۳۹هـ ق) کال ته رسېږي، ددې شعر له امله د پښتو ادبیاتو د لاسته راغلي لیکلي شعر نېټه د ګاونډیو ژبو په تېره بیا د فارسي ژبې له لومړي لاسته راغلي شعر څخه نږدې یوه نیمه پېړۍ (۱۵۰کاله) دمخه ځي. د ایران یو شمېر فارسي ژبي لیکوال وو چې د فارسي ژبې د بډایه ادب له

مخې په سیمه کې د فارسي ژبې د تفوق روحیه پالي او افغانستان هم د خپلې ژبې او فرهنګ د نفوذ ساحه ( ! ) ګڼي، د پښتو ژبې او ادب دا تاریخي قدامت او قوت نه شو زغملای، نو ځکه یې په عمومي ډول له پټې خزانې او په خاص ډول له دې شعر سره حسادت او حساسیت وښود او ورو ورو یې پر پټه خزانه د ((**جعل** او تذویر )) تورونه پورې کړل. یانې ددې تورونو اساسي سرچینه د ایران ملتپالي او ژبپالي لیکوال وو. دوی ددې کار لپاره په لومړي ګام کې په افغانستان کې یو شو فارسي ژبي لیکوال د پټې خزانې مخالفت ته راوپارول او بیا د وخت په تېرېدو سره یو شو ((پښتانه لیکوال )) هم ددې لړۍ برخوال شول.

**د پټې خزانې سیاسي ارزښت:** په مجموعي ډول ټول افغانان او په ځانګړي ډول پښتانه چې د علامه اقبال په وینا د اسیا زړه تشکیلوي، په وروستیو ، درې، درې نیم سوو کلونو کې لومړی د یو محلي او ورپسې بیا د یو ملي حکومت خاوندان شول او له دې سره سم له ځینو ګاونډیو هېوادونو سره د سیاسي رقابت ترڅنګ پر فرهنګي سیالۍ هم اخته شول، نو د یو شمېر ګاونډیو هېوادونو او قومونو سیاستوال او لیکوال چې افغانان او په تېره بیا پښتانه یې د (( یو وحشي او یرغلګر )) ( ! ) قوم په توګه معرفي کول، د پښتنو د فرهنګي

شتمنی راسپړل او ځلول ورته د زغملو نه وو، دوی غوښتل چې فرهنګي محکومیت د سیاسي محکومیت وسیله کړي، نو په دې خاطر یې د پټې خزانې، فرهنګي، ادبي او علمي ارزښت له سیاسي هغو سره مخلوط کړ او د سیاسي انګېزنو پر بنسټ یې د (پټې خزانې) مخالفت ته راودانګل.

**د پټې خزانې متني ارزښت:** څرنګه چې د پټې خزانې لیکوال (محمد بن داود هوتک) یو پوخ، فطري، کسبي او مسلکي لیکوال و او د شاه حسین هوتک د دربار منلی منشي و، نو په خورا دقت او انتظام یې د تاریخي تسلسل او اخځونو په ښودلو سره د (۵۰) تنو په ګډون د شاعرانو تذکره ترتیب کړې ده او د یو ښه، پوخ او کره متن په ترڅ کې یې هغوی معرفي کړي دي، نو د متن دغې ښکلا هم ځینې منفي باف لیکوال راپارولي چې ولې یې پر هغه وخت داسې پخه تذکره لیکلې ده. دوی په عام ډول د پښتنو او په خاص ډول د (محمد بن داود هوتک) پر استعداد شک ښکاره کوي چې پښتانه! هغه وخت او داسې کتاب!!؟

دوی د بېته پام نه کوي چې تر همدې تذکرې څخه نږدې اووه سوه کاله د مخه د غزنویانو په دربار کې د ((شاهنامې)) په شان یو مهم اثر لیکل کېدی او زړې افسانې په نظم کېدی شي، په دې دربار کې پر یوه وخت شاوخوا (دوه نیم سوه) لیکوال پالل

کېدی او د شعرونو په لسګونو دېوانونه رامنځته کېدی شي، خو د هوتکیانو په دربار کې دي یو محمد هوتک ددې استعداد نه پیدا کوي چې یوازې د تېرو او هم مهالو شاعرانو یوه تذکره ترتیب کړي؟ ځکه چې د دوی په نظر دا قوم د فرهنګ او ادب پنځونې استعداد نه لري!؟ که چېرې پټه خزانه د یو څلور پنځو شاعرانو له ګډو وډو سوانحو جوړه وای نو بیا خو کېدی شول چا پرې انتقاد نه وای کړی. اوس د پټې خزانې (منتقدین) د خپل استعداد له لید لوري د پټې خزانې متن ګوري، دوی فکر کوي چې ولې دومره پوخ متن؟ که هر ((نقاد)) د خپل استعداد له زاوېې څخه د بل لیکوال اثر ته وګوري، نو بیا خو د ډېرو نړیوالو لیکوالو پر اثارو هم شک کولای شو، ولې هومر؟ ولې هوګو، ولې بلزاک، ولې ټاګور، ولې خوشال او داسې نورې ډېرې ولې ولې.

**د پټې خزانې اروایي ارزښت او اغېز:** په یوه ادبي اثر کې د لیکوال او لوستونکي ترمنځ یوه پټه رابطه وي، د همدې رابطې پر بنسټ د دواړو فکري او اروایي اړیکې ټینګېږي، دا رابطه په حقیقت کې د هغه (صداقت) بیان دی، چې لیکوال یې په خپل اثر کې وړاندې کوي. هر څومره چې د لیکوال په اثر کې د صداقت او رښتینولۍ جوهر زیات وي، په همغه اندازه د لیکوال او لوستونکي رابطه زیاته ټینګېږي او

نږدې کېږي، که لیکوال په خپل اثر کې د صداقت پرځای د مفاهیمو په انتقال کې له تصنع، تکلف او لفظي درغلۍ څخه کار واخلي، لوستونکی به یې یو ځل اثر ولولي، بیا به یې هم ولولي خو هېڅکله به یې زړه ته لاره پیدا نه کړي، په همدې وجه تکلفي، تصنعي او نړه اکتسابي لیکوال کامیاب لیکوال نه دي او نه هم هېڅکله عام محبوبیت پیدا کولای شي. ادبي اثر داسې یوه پدیده نه ده چې څوک یې په زوره پر چا ومني او نه هم د کره کتنې په شان علم دی چې ځینې کره کتونکي په پای کې یو حکم صادوري. زه وایم چې په پټه خزانه کې کوم قوت موجود دی چې پر عام ولس او په تېره بیا پر لیکوالو یې ځان د تقدس تر سرحده منلی دی؟ نه محمد بن داود هوتک (د پټې خزانې مولف) او نه هم پوهاند عبدالحی حبیبي (د پټې خزانې شارح) کوم زور درلود او نه هم د پټې خزانې تر شاه د زور لښکرې ولاړې وې چې پر خلکو یې ومني. زما په فکر په دې اثر کې صداقت، د لیکوال احساس، عواطفو د لیکوال له فني قوت سره ملګري کېږي او په پای کې اثر هغو مره قوت پیدا کوي چې ان د خلکو پر زړونو د یو سپېڅلي ادبي اثر په توګه حکومت وکړي. د دنیا په ټولو ادبي اثارو کې دا خبره تراوسه نه ده پېښه شوې او حتی دا به یوه معجزه وي چې یو څوک یا لیکوال دې نن کښېني، درې سوه کاله وړاندې د یوه بل لیکوال په نوم دې تذکره

ولیکي او هغې کې دې بیا ان تر یو زر کلونو پورې په بېلا بېلو دورو کې د هر پړاو له تاریخي او اجتماعي حالاتو سره سم لیکوال او ادبي بهیر داسې معرفي کړي، چې د خلکو پر زړونو دې د نورو ټولو ادبي اثارو په انډول زیات حکومت وکړي.

که موږ فرضاً د یو څو شېبو لپاره دا فرضیه ومنو نو بیا خو دغه بل لیکوال تر محمد بن داود هوتکه هم د زیاتې ستاینې او شاباسۍ وړ دی چې په شلمه پېړۍ کې داسې یو اثر لیکلای شي چې د پېړیو په بهیر کې د یوې ژبې مطرحو شاعرانو ته شعرونه هم منسوب کړي، ادبي ژوند، مبارزې او ویاړونه هم ورپه برخه کړي او بیا نور لیکوال، سیاسي او ادبي تاریخونه هم د دې لیکوال خبره تائید کړي.

تر اوسه پورې د بشر د ادب تاریخ په ټوله دوره کې دا ډول ادبي معجزه چا نه ده تخلیق کړې، هو داسې شوي چې یو شاعر یا لیکوال د بل نومورکي، نومور، مړ یا ژوندي شاعر یا لیکوال کلام په خپل نامه کړی وي، خو دا ډول غلا هم ډېره ژر رسوا شوې ده، خو دا بل ډول معکوس کار چې څوک دې خپل اثر بل چاته منسوب کړي او خپله دې ترې دفاع هم وکړي، په ادبي تاریخ کې یې بېلګه نه لرو.

**پټه خزانه د هغې انډول، بدیل یا مثل:** د پټې خزانې مخالفین چې پر پټه خزانه یې متضاد شکونه څرګند کړي دي،

د هغو لپاره به یو منطقي دلیل دا وای چې دوی پټې خزانې ته ورته یو بل تاریخي اثر یا تذکره جوړه کړې وای، تر هغه وروسته یې پر خلکو منلې او بیا یې له پټې خزانې سره پرتله کړې او خلکو ته یې ویلي وای چې دا دی د دا ډول ((جعلي)) اثارو لیکل او پر خلکو یې منل ګران کار نه دی. که دا کار یوه یا دوو لیکوالو نه شو کولای، نو بیا دې د پټې خزانې ټول مخالفین، په ښکاره او پټه سره ناست وای په شپو، میاشتو او کلونو دې کار کړی وای او بیا دې خپل لاسوند (سند) خلکو ته وړاندې کړی وای او ولې ډېر وخت او ډېر کلونه؟ ځکه د یو ((جعلي)) اثر لپاره خو ډېر وخت ته اړتیا نه شته، هغه خو د تخیل، احساس او عواطفو په زور نه رامنځته کېږي، بلکې فکر، مهارت او چل ول ته ضرورت لري، نو د پټې خزانې ټولو مخالفینو باید د زیاتې انرژۍ د لګولو پرځای دا کار ژر تر ژره ترسره کړی وای. د منفي بافانو او شکاکانو دا خاصیت دی چې تر خپل فکر او استعداد پورته اثر باندې ضرور شک ښکاره کوي، مشرکینو به پر قرآن کریم هم شک کاوه، د قرآن کریم ایتونه به یې شعر باله او ځینو به سحر و جادو. کله چې د لوی خدای(ج) له لوري په همدې اړه د (انا اعطینا...) سورة نازل شو او له مشرکینو څخه وغوښتل شول چې تاسو ددې کلام معادل یا مثل جوړ کړئ، نو هغوی چې هر څومره زور وواهه څه یې ونه

کړای شول نو تر هغه وروسته یې بیا اعتراف وکړ چې دا واقعاً هم د الله(ج) کلام دی، نو پټه خزانه خو د بشر د ذهن یوه راټوله کړې ادبي تذکره ده، نو د پټې خزانې ټولو مخالفینو ته یو چیلنج دی چې په انفرادي یا ډله ییز ډول دې ته ورته یو اثر رامنځته کړي.

**پټهٔ خزانه، د شک او ثبوت مقابله:** پر یوه شي باندې شک ښکاره کول اسانه دي، خو د هغه پر وړاندې د ثبوت وړاندې کول بیا هغومره اسانه نه دي. پر پټه خزانه هم شک ښکاره کول اسانه کار دی، لکه چې دا شکونه د هر شکاک له خوا شوي هم دي، خو د خپل شک د اثبات لپاره یوه هم غوڅ ثبوتونه نه دي وړاندې کړي، د شکاکانو پر وړاندې هم چې کوم اسناد او دلایل وړاندې شوي هغه هم شکاکانو ته د منلو وړ نه وو هغوی پر هغو بیا هم شک ښکاره کړی دی. خو زما په نظر پټه خزانه خپله یو ثبوت دی، یو شتوالی او موجودیت دی، د ثبوت له پاسه بیا ثبوت وړاندې کول څه مانا نه لري.

لوی خدای(ج) په طبیعت کې ډېر رازونه اچولي، له هغو رازونو څخه یو دا دی چې (( هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره که نه ))؛ یو څوک به کار کوي بل به نیوکه کوي، یو څوک به یو اثر لیکي بل به پرې نقد کوي، یو څوک به د ښه خوی او ښو اخلاقو خاوند وي او بل پرې شک کوي او وایي به چې دا چلند

یې د قوت د نشتوالي له امله دی، په اصل ماهیت کې دا سې نه دی، یو څوک به ښه صادق مسلمان وي، بل به منافق او شیطان وي، یوه خوا به حق وي بله خوا به بطلان وي او ژوند به ترپایه همدا سې د متضادو لوریو په مقابله کې روان وي.

پټه خزانه هم د غسې یو ثابت حقیقت او واقعیت دی، په دې لړ کې شکاکان هم حق لري د خدای(ج) د پنځول شوي طبیعت مطابق خپل شک ښکاره کړي. ځینو لیکوالو د رحمان بابا د ژوند او مرګ د کلونو په باب شک ښکاره کړی او هغه یې سم نه دی بللی او په دې باب یو شمېر لیکوالو لیکنې هم کړي، دا چې رحمان بابا پر کوم کال مړ دی او پر کوم پیدا ؟ دا ددې مانا نه لري، چې د رحمان بابا له شتوالي منکر شو، د رحمان بابا د شعرونو شتوالی خپله د رحمان بابا د اثبات لپاره کفایت کوي، نو د پټې خزانې د اثبات لپاره هم غټ دلیل په خپله د هغې متن دی چې د سالم عقل او فکر خاوند ترې انکار کولای نه شي. ځینو لیکوالو او په اصطلاح ((تېزبینو)) لیکوالو دا د ځان د تبلیغ او اطراح لپاره یوه ښه وسیله ګڼله چې پر یو مشهور اثر، پر یوې مشهورې تاریخي پېښې او یا مطرح لیکوال وپېچي، پر هغو شک ښکاره کړي او ځان مطرح کړي.

یو وخت موږ په پېښور کې غوښتل د خوشال بابا د زوکړې د څلورسومې کالیزې په ویاړ یو علمي سیمینار جوړ کړو، د

سیمینار تر جوړولو وړاندې د سیمینار د مقالو د وېش لپاره یو بورډ یا جرګه ګۍ جوړه شوې وه، په جرګه ګۍ کې یو تن مطرح لیکوال وویل زه غواړم د خوشال بابا د ژوند یانې تولد پر کال لیکنه وکړم، ده وویل زما د لیکنې عنوان دی: خوشال بابا پر کوم کال پیدا دی؟ یو زرو دوه ویشت که یو زرو یوویشت؟ ده وویل ما سره ګڼ شمېر داسې دلایل، مدارک او اسناد شته؛ دا ثابتوي چې بابا پر یو زرو یوویشت کې پیدا دی نه په یو زرو دوه ویشت هـ ق کې. مونږ وویل دا یوه اتفاقي موضوع ده او واضح ده، ضرورت نه شته چې پر دې لیکنه وشي، د بابا د ژوند او اثارو پر هغو اړخونو باید خبرې وشي چې تر اوسه لا مبهم دي او څېړنې ته اړتیا لري، خو لیکوال صیب بیا ټینګار وکړ څوک وایي چې د خوشال بابا د ژوند کال اتفاقي دی؟ هېڅ اتفاقي دی نه، تاسې یو ځل زما منابع او اسناد وګورئ بیا به مو باور پرې راشي، پرېږدئ چې مونږ لوستونکو ته واقعیت وایو، کله چې لیکوال پر خپلې خبرې تر حده زیات ټینګار وکړ، نو ما ته هم یو څه غوصه راغله ما ورته وویل: د خوشال بابا په باب تر ټولو کره، معتبره او باوري اسناد کوم دي؟

ده وویل خپله د بابا اثار. نو ما وویل کله چې خپله بابا وایي:

((د هجرت زر دوه ویشت سن و ــــ چې زه راغلم په میان))
نو بیا ته څوک یې چې د بابا د ژوند په هکله خپله د بابا خبره رد کړې، دې سره زموږ بحث نور پای ته ورسېد.

نو اوس راځو خپلې خبرې ته چې پر یوه شي د شک ښکاره کول او د هغه لپاره د یو څو مرتبو او نا مرتبو، وړاندې او وروسته دلایلو راوړل او د عادي لوستونکو د ذهنونو ګډوډول اسانه کار دی، خو د خپل ناسم شک اثباتول ساده کار نه دی.

**د پټې خزانې له مخالفینو څخه یو:** پټې خزانې په پیل کې د سیاسي او کلتوري سیالیو له امله بهرني مخالفین درلودل، وروسته وروسته بیا د مخالفتونه په کورنۍ کچه هم څرګند شول، خو د کورنیو مخالفینو د مخالفت علتونه ډېر زیات سیاسي او کلتوري نه وو؛ اکثره د حقارت له رواني عقدو او په فرهنګي چاپېریال کې د سالم رقابت له لارې لوړ شهرت او مقام ته د نه رسېدو له امله پیدا شول. د کورنیو مخالفینو سرخېل ښاغلی قلندر مومند دی چې په پښتنو لیکوالو کې نسبتاً پام وړ مقام لري. دقلندر مومند د شهرت یوه لویه وجه همدا د پټې خزانې مخالفت دی، سره له دې چې هغه په شعر، لنډه کیسه، تنقید او تحقیق کې هم مشهور دی، خو په دې هره برخه کې دده همعصره داسې نور پښتانه لیکوال وو چې له قلندر مومند څخه یې اول مقام نیولی و او زیات شهرت ته

رسېدلي وو ، د بېلګې په توګه څوک د غزل نوم اخلي، نو د حمزه بابا ، که د تحقيق نوم اخلي نو کامل مومند ، که د لنډې کيسې نوم اخلي نو مهدي پاچا او که د انقلابي شاعرۍ نوم اخلي نو د اجمل خټک نومونه يې اول په ذهن کې راګرځي.
قلندر مومند ته دده د فرهنګي شخصيت د خړوب او مطرح کېدو يوازينۍ لاره همدا ((تنقيد )) پاتې وه. نو ده بايد داسې يو څه ته ګوتې وروړې واى چې دده د فرهنګي شخصيت د شهرت غوښتنې دا غريزه يې خړوب کړې واى. د قلندر مومند دا پټه تلوسه هغه وخت د فوران حالت ته ورسېده چې پر (۱۳۴۵ل، ۱۹۶۶م) کال کابل کې د خوشال بابا په ياد جوړ شوي نړيوال سيمينار ته رابلل شوی و ، دا هغه مهال و چې د پټې خزانې له لومړي چاپ څخه نږدې (۲۵) کاله تېرېدل، ددې سيمينار علمي مشري د لوی استاد علامه عبدالحی حبيبي پر غاړه وه. دې سيمينار ته پر قلندر مومند سربېره حمزه بابا او څو نورو ليکوالو ليکنې وستايل شوې، لوی استاد پوهاند علامه حبيبي چې نه يوازې د افغانستان، بلکې د ټولې سيمې په کچه يو لوی عالم و ، هم زيات وستايل شو او درناوی يې وشو ، قلندر مومند په دې سيمينار کې دده له خپلې توقع او شان سره برابر ونه ځلېد ، نو له همدې ځايه ده د داسې يو ناسم رقابت لاره ونيوه چې پخوا يې دومره جوش نه و. دا وخت د قلندر مومند د

قلم نوکه او ذهن د (استاد حبیبي) لوري ته واوښتل او په دې کې یې لومړی کتاب چې لوی استاد پرې حاشیې، تعلیقات او شرحې لیکلې وې هغه (پټه خزانه) وه، نو همدا کتاب هدف یا ټارګېټ شو، ولې پټه خزانه هدف شوه؟ ولې د حبیبي صاحب خپل تالیفات تر برید لاندې رانغلل؟ ددې پوښتنې ځواب دادی چې د پټې خزانې د تردید لپاره لا تر دې دمخه بهرنۍ ذهنیت کار کاوه، هغوی هم یو کورني شکاک او کورني شکاک هم یو بهرنۍ ملا تړ ته اړتیا لرله، مشترکې ګټې د دوی د ګډې همکارۍ سبب شوې. ښاغلي قلندر مومند تر هغه وروسته پر پټه خزانه څو انتقادي لیکنې وکړې او د پېښور په چاپي خپرونو کې یې خپرې کړې.

قلندر مومند نږدې شل کاله پر پټه خزانه ((تحقیق او تنقید)) وکړ او په پای کې یې ((پټه خزانه فی المیزان)) کتاب چاپ کړ، هغه وخت چې لوی استاد عبدالحی حبیبي ژوندی و، نو د پټې خزانې د بهرنیو او کورنیو شکاکانو د شکونو په اړه یې خپل مستند دلایل ولیکل، دلوی استاد تر مړینې وروسته قلندر مومند ته لاره نوره اواره شوه، وروسته ده یو شمېر هغه لیکوال په تېره بیا د پېښور ځینې ځوان لیکوال چې دده پر چاپېریال راټول وو او په یو نه یو ډول یې ده د شخصیت په وده کې رول درلود، په زړه نا زړه ډول د قلندر مومند فکر تعقیب

کړ، خو بیا هم په پېښور او کویټه کې ډېر نور داسې لیکوال وو چې د قلندر مومند د نظریاتو خلاف یې لیکنې وکړې. ښاغلي همېش خلیل د قلندر مومند د ((پټې خزانې فی المیزان)) په ځواب کې د ((تول پارسنګ)) په نامه یو مستقل اثر ولیکه. د پټې خزانې د مخالفت لړۍ په پای کې د ابتزال داسې یو حالت ته ورسېده چې ان ځینې داسې کسان چې اصلاً یې په خپل ټول عمر کې یو ځل هم پټه خزانه لوستې نه وه، هغوی هم د پټې خزانې په اړخ خپل نظرونه څرګند کړل. یوه ورځ له پېښوره (ټل) ته په یوه مشاعره کې د ګډون لپاره روان وو، د کوزې پښتونخوا یو ځوان لیکوال له ما څخه وپوښتل ((یون صاحب دا د پټې خزانې په باب ستا رایه څه ده؟)) ما ویل له رایې څخه دې مطلب څه دی؟ ده وویل منې یې که نه؟ ما وویل زه یې ومنم که ونه منم هغه خپله داسې یو اثر دی چې ځان یې پر خلکو منلی او بل دا خو څه د عقاید و مسله نه ده چې که څوک یې ومني نو له ګناه به خلاص شي او که ویې نه مني نو ګناهکار به شي. منل نه منل د هر چا خپل کار دی خو واقعیت په خپله واقعیت دی. ده وویل بیا هم مطلب مې همدا و. ما ویل ستا رایه څه ده؟ ده وویل زه خو یې مخالف یم. ما ویل پټه خزانه دې لوستې؟ ده وویل نه جي! ما ویل چې لوستې دې نه ده نو بیا مخالف یې په څه یې؟ ده وویل: دا قلندر صاحب او نور چې کوم دي، هغه یې نه مني

که نه ما ویل... ما وویل د واقعیت خبره بېله ده او د منلو یا نه منلو خبره بېله. ما ویل اسلام د خدای(ج) یو کامل دین او قرآن د خدای(ج) اسماني کتاب دی، بیا یې هم د نړۍ نا مسلمان وګڼي او همدارنګه یو شمېر منافق مسلمانان عملاً نه مني نو دا خو ددې مانا نه لري چې اسلام او قرآن کې نیمګړتیا ده، نیمګړتیا خپله زموږ په ذهن کې ده. پټه خزانه یو واقعیت دی چې پټېدلای نه شي، د منلو او نه منلو خبره د هغې د واقعیت مانع کېدلای نه شي...

د قلندر مومند ترخنګ یو شمېر نور لیکوال چې د هغه لاره تعقیبوي، هغوی له معقولې لارې او د فرهنګي کارو هڅې په وسیله د شهرت او مقام لوړو پړاوونو ته نه شي رسېدلای، نو دوی دا لاره غوره ګڼلې چې داسې یو ادبي اثر ته لاس وغځوي چې هغه د خلکو زړونو ته لاره پیدا کړې وي، دوی فکر کوي په دې کار سره به د خلکو حساسیت راوپارېږي او زموږ لیکنه به ولولي، بیا به مو پر ضد لیکنه وکړي او که ځواب را نه کړي نو بیا به وو ایو ګوره چې زموږ دلایل پاخه وو چا یې ځواب ونه شو ویلای. دا ډول لیکوال چې د شهرت د فقر پر غریزې اخته دي، په هر ځای کې شته؛ په جلال اباد کې یو ځوان عادي او مبتدي لیکوال په یوه نوې راوتې سیمه ییزه مهالنۍ عادي جریده کې پر یوه ډېر پاخه او مطرح لیکوال په دې نیت بې ځایه، نامعقوله

او له واقعیت څخه لرې انتقادي لیکنه وکړه چې مطرح لیکوال به یې ځواب ووایي او دې سره به ((منتقد)) او ((جریده)) دواړه شهرت ته ورسېږي او په پینځوو کې به یاد شي. خو مطرح لیکوال هغه لیکنه ډېره بابېزه وګڼله او هېڅ ځواب یې ور نه کړ، یو بل لیکوال ورڅخه وپوښتل چې د هغه لیکنې ځواب دې ولې ور نه کړ؟ هغه وویل: دا ځوانان دي، دوی د شهرت غریزې پسې اخیستي، زه نه غواړم په خپل ځواب دوی خپل هدف ته ورسوم. دا مسله همدا اسې غلې پاتې شوه، څه موده وروسته هغو ځوانانو له هغه مطرح لیکوال څخه بښنه وغوښته. نو د پټې خزانې د کورنیو مخالفینو یوه غټه ستونزه او ناروغي همدا ده چې د شهرت غریزې پسې اخیستي دي. که موږ د ښاغلي قلندر مومند ټول لیکلي اثار سره وارزوو نو راته معلومه به شي چې هغه په غزل کې د حمزه بابا، په انقلابي شاعرۍ کې د اجمل خټک او په تحقیق او تاریخ لیکنه کې د کامل مومند او استاد عبدالحی حبیبي مخکښي نه شوه زغملای. د اروا پوهنې له نظره هغه اشخاص چې د ژوند په یو لړ سیاسي، ټولنیزو او فرهنګي چارو کې ناکام او یا هم تر خپلو محسوسو او نامحسوسو سیالانو پاتې راشي، معمولاً پر منفي کرکترونو بدلېږي، هغه لیکوال چې په لیکوالۍ کې د تخلیق او تحقیق په دواړو برخو کې پام وړ او مطلوب پرمختګ ونه کړي معمولاً

د ربیمه لار (تنقید ) غوره کوي. کله کله بیا دا تنقید د اصلاح او لارښوونې پر محور راڅرخي، خو کله کله بیا د منفي بافۍ د ناروغۍ ښکار شي او هرې مثبتې پدیدې ته ضرور د شک او تردید په سترګو ګوري، ښه کره کتونکی همغه دی چې یو اثر مخکې تر مخکې د ښه والي او بدوالي د ټاکلې فرضیې له مخې ونه رازوي. یانې فرضیه مخکې تر مخکې قید نه کړي، چې حتماً به دا اثر ښه ثابتوم یا بد او کمزوری. ښه لاره داده چې اثر څنګه دی همغسې یې وارزوي، خپل شخصي نظر او عواطف په کې دخیل نه کړي. زه فکر کوم چې قلندر مومند مخکې تر مخکې د پټې خزانې په اړه د (رد ) فرضیه ټاکلې وه او خپله ټوله انرژي یې د همدې (رد ) لپاره راټوله کړې وه. د قلندر مومند د لیکنې تر شا څه رواني مشکلات پراته وو، چې ده نږدې شل کاله د هغه اثر د تردید لپاره کار وکړ چې محمد هوتک هغه په دوو کلونو کې لیکلی و. کېدی شي محمد هوتک د پټې خزانې پر لیکلو دومره نه وي په تکلیف شوی لکه قلندر مومند یې چې په تردید کې په تکلیف شو.

قلندر مومند په خپله لیکنه کې په اصطلاح له نجومي علم څخه هم ګټه اخیستې او په اصطلاح له بېلابېلو جنتریو یې استخراج کړی چې د پټې خزانې د متن په پای کې یوه راغلې نېټه غلطه ثابته کړي.

محمد هوتک په پټه خزانه کې ليکي: ((کتاب تمام سو، په ورځ د جمعې (۲۴) د شوال المکرم (۱۱۴۲) هجري په قندهار کې او مولف محمد هوتک هم فارغ البال سو الحمد لله حمداً کثيراً))

خو قلندر مومند په دې نظر دی چې د شوال (۲۴) د جمعې ورځ نه ده، له همدې پورتني ټکي سره په ارتباط کې د ښاغلي قلندر مومند د يوې مرکې يو ټکي ته ستاسو پام را اړوم.

د قلندر مومند تر وفات نږدې درې کاله وړاندې، ښاغلي حنيف خليل له ښاغلي قلندر مومند سره يوه مرکه کړې وه، دا مرکه همغه مهال له پېښوره خپرېدونکې (وحدت) ورځپاڼه کې چاپ شوې وه. په دې مرکه کې ښاغلي حنيف خليل له ښاغلي مومند څخه پوښتلي وو چې ستاسو د پيدايش کال کوم دی؟ هغه ورته په ځواب کې ويلي وو ((... زما د پيدايش کال ماته معلوم نه دی، ځکه چې هغه وخت مورو پلار د پيدايش کال نه ليکه او که چا ليکه هم نو په يوه کاغذ کې به يې ليکه بيا به يې د قرآن شريف په منځ کې ايښوده، نو په دې وجه زه تاسو ته د خپل پيدايش کال سم نه شم ښودلای))

اوس دلته د خپل پيدايښت د کال په اړه دومره بې تفاوته او يا نا خبره دی، نو بيا کوم دلايل او مهم عوامل وو چې دی يې دېته هڅوه چې درې درېنيم سوه کاله دمخه له نورو سره د ورځو

او ساعتونو حساب، هغه هم په خپله خوښه وکړي؟ پر ۱۱۴۲هـ ق کال د شوال (۲۴) د جمعې ورځ وه او که نه وه؟ دا او دې ته ورته پوښتنې سړي ته د دې لاره اواروي چې په خپله د شکاکانو پر نظرونو او شکونو شک وکړي او ووايي چې دا ډول شکونه له سياسي، کلتوري سياليو او شخصي عقدو څخه راټوکېدلي دي او پر واقعيت ولاړ نه دي. که د پټې خزانې د بهرنيو او کورنيو مخالفينو ټول نظرونه راټول کړو نو کېدی شي دې نتيجې ته ورسېږو چې دا ټول نظرونه د سياسي، کلتوري، ژبنيو او تاريخي ناوړه غرضونو او د ځينو ځانپالو او شهرت خوښو ليکوالو د شهرت د غريزې او شخصي عقدو يو ګډ امتزاج دی چې علمي معيارونه نه لري او پر پورتنيو يادو عواملو ولاړ دي او بس.

# "د حګانحګاني شګا مار " سفر

د استاد مجروح د ځانځانۍ ښامار
د ځينو منظومو برخو منثوره بڼه

د انسـان حګانغوشـګتنه او نفسـي خواهشـات داسـيګ غريزيي عناصر دي چيګ هر وخت له انسان سره ملګګري وي، د انسان نفس اصلاً د لايتناهي هوسونو مجموعه ده. که دديګ هوسونو او نفسي غوشګتنو مشروع علاج او کنترول ونه شي او هغه په سم أول مهار نه شي، نو د انسان له نفس خګخه خپله يو لوی شګامار جوړيګإي، داسيګ يو شګامار چيګ تګول عمربه د مثبتو انساني ارزشګتونو پر له منحګه وړلو او خوړلو مصروف وي، تر تګولو د مخه ييګ خپله همغه انسان ته خطر او زيان تر تګولو زيات دی او د غتګوالي او وديګ په حالت کيګ ييګ مقابله هم ورته أيګره کګرانه ده. استاد سيد بهاوالدين مجروح په ((حګانحګاني شګامار)) کيګ د نفس د همدغه شګامار کيسه کوي چيګ په خګه أول په انسان کيګ عواطف، مينه، صميميت او خواخوإي له منحګګه وړي او په هغه کيګ د لوړتيا، حګانغوشګتنيګ او حګانخوشګونيګ غريزه پياوړيګ کوي. د ماستړۍ دورې په بهير کې د استاد

مجروح پر دې اثر باندې پر گڼو تبصرو او ليکنو سربېره، پر منثوره بڼه منظوم اړول هم شامل و، ما دا اثر په لنډيز سره په منثوره بڼه واړاوه، داسې چې محتوا يې هم خوندي شوي دي او خپله د استاد الفاظ هم کارول شوي دي او د روايتي داستان بڼه يې هم په پام کې نيول شوې ده.

استاد مجروح خپل دا اثر ((د ورک سمندر غاږيگ)) خگخه پيلوي او په يوه شگار کيگ د ژوند په باب د يوه عالم د خوليگ خبريگ بيانوي، دا عالم په خپلو خبرو کيگ وايي: ((تر هغه چيگ دا حگمکه او اسمان وي، تل د هر انسان دوزخ به بل انسان وي)). عالم وايي ((دا ژوند يو مرموزه سمندر دی، جهنم په بل جهان کيگ چيگرته لريگ نه دی، بلکيگ د هر انسان په حگان کيگ د هغه جهنم دی.)) بيا د شگار د وکگؤو کيسه کوي چيگ له يو بل خگخه اأريگاِي، له حگانه جکگ ديگوالونه راتاووي، يو بل سره اخته دي خو له توپانه نه دي خبر چيگ را روان دی، خو دديگ تر خگنگگ پوهگ سؤی وايي چيگ زه له توپانه نه اأريگاِم خو د خپل زؤه د ژورو په تل کيگ له شگاماره اأريگاِم، عالم سؤی په ديگ سوچ کوي چيگ د شگار خلکو ته خگنگگه خپل پيغام ورسوي.بيا د ژوند لومؤی خگرخ تاويگاِي او شگامار د مرکگ پر لوري حگي، دلته په لومؤي پؤاو کيگ د هغه شگار کيسه کوي

چیګ تګول شګاریان ییګ رنحګوران دي. دلته د هغه شګار کیسه کیګإي چیګ خلکو ییګ یو بل سره په صمیمیت او دوستة کیګ ژوند کاوه، د بادارة او غلامة چل ییګ زده نه و. خګاروي له حیواناتو نه أاریګدل او مرغانو خپلیګ خوإیګ نغمیګ غإولیګ، په همدیګ وخت کیګ د تګول جهان لوی فاتح را خګرګګندیګإي، یو سؤی پر تور اس سپور وي او توریګ جامیګ ییګ اغوستي وي او حګان ته د ((ایکګو)) یانیګ (زه) خطاب کوي، دیګ سره پر شګار د فرماندار واکمني شروع شوه، نوي واکمن شګحګیګ په کور کیګ دننه بندیګ کؤیګ، حګوانان ییګ پر سختو کارونو وکګمارل، هوسة او مرغان ییګ په غشو وویشتل او خګارویو تګولو له شګار کأه وکؤه، په همدیګ وخت کیګ د شګار خلک له ویګریګ د اژدها(شګامار) ستاینیګ پیلوي، د فرماندار مجسمه جوؤیګإي، لوی راهب د شګامار له ژونده خبر و او خلکو ته د هغه کیسه کوي، راهب د چینجي کیسه کوي چیګ خګنګګه په لوی شګامار او قوت بدل شو. بیا د شګامار بد او بیګ درمانه انحګور تشریح کوي، غم، قهر، غضب، أار او وهم د هغه غتګ مرضونه کګنګي، شګامار د خپلیګ واکمنة په دویم پؤاو کیګ یو دمه حګای لتګوي، خو هیګخګ داسیګ دمه حګای نه شي پیدا کولای چیګ دی په کیګ دمه

شي، نو حګکه خو د یوازیګتوب احساس کوي او شګار کیګ هیګخګوک داسیګ نه پاتیګ کیګاِي چیګ دده خدمت وکؤي، نه مینحګه وه نه نوکر و چیګ دی پریګ فرمان وچلوي، تګول شګار مؤو، چوپه پوپتیا وه او له شګاره هدیره جوؤه شویګ وه.

بیا هغه تیګر وختونه ورپه یاد شول، د عشق او مینیګ شګاپیګرة، د ژوندون د سیند پر غاؤه خوبونه، خو اوس نه نارنج و او نه ییګ ګګل، نه ییګ بویونه، نه د مرغیو ألیګ ألیګ ویګ چیګ د شګار خلک ییګ نندار یګ ته ولاؤ وي، بیا د سیند په منحګ کیګ یو مار تیګریګاِي او پر سر ییګ د لعل په شان رنګا بلیګاِي، د شګار د خلکو منحګ کیګ ګګونګګوسي پیلیګاِي، دیګ سره د شګار قهرمان د ژوندون د سیند له غاؤیګ جلا کیګاِي او د ژوندون د چینیګ پر لوري نه ستنیګاِي. بیا له حګان تپوس کوي ((هغه ورکه نامعلومه هستي هخګه ده چیګ دا هسیګ سرګګردانه ورپسیګ ګګرحګم، په د شګتو په بیابانونو؟))

قهرمان به په سوچونو کیګ أوب و. دیګ وخت کیګ د سپرلي الهه ورته خبریګ کوي چیګ ((بیګ له ما به ستا باغونه، چمنونه تګول خزان شي او ستا رودخانیګ به هم وچیګ شي...)) قهرمان بیا په خپله هسکه مانګة کیګ

او سیګده خو د اوإدو فکرونو په تګال کیګ زنککیګده، خو یوه ورحګ ماشګام چیګ توره خؤه را دبره شوه نو یوه زؤه بوأة له کومه حګایه ، پتګه پتګه او غلیګ غلیګ راغله او د شګار د دروازیګ خواته ودریګدله، أیګره بده خګیګره ییګ درلودله، توریګ جامیګ ییګ اغوستیګ ویګ، له اجازیګ او زنحګیر شرنککولو پرته د قهرمان مانګة ته ننوته او له هغه سره ییګ ملاقات وکؤ. د بوأة تر ملاقات وروسته دریګم پؤاو پیلیګإي "د دوزخ له درشل دیګخوا ". په دیګ وخت کیګ فرماندار یا قهرمان هغه وخت په یادوي چیګ ده د خپل زؤه شګکلیګ مانګة جوؤوله، بیا د عشق رب النوع او الهه ددیګ مانګة د شګکلا کیسه کوي چیګ دا مانګة د عواطفو او هیجانونو معمارانو جوؤه کؤیګ ده او أیګر شګکلي نقشونه او نکګارونه ییګ درلودل او د دیګ لپاره ییګ تیاره کؤیګ وه چیګ کله به ورته ستر واکمن د عشق او مینیګ رب النوع او الهه رارسیګإي، خو خګومره چیګ شپیګ اوإدیګدلیګ د ده د راتکګ انتها ورکیګدله. خو په اخر کیګ هغه نا اشنا سؤی چیګ توریګ جامیګ ییګ پر تن او پر تور اس سپور و راشګکاره شو- او مانګة ته پورته شو او د شګار خلکو ته ییګ په خطاب کیګ وویل: "زه خو زه یم ، زه " "ایککو " یم. زه فاتح د لوی جنککونو د جهان یم ستاسو

شگار زما تابع دی ". د شگار خلک له ظلم نه فراري شول او شگار د سکوت خواته روان شو. فرماندار په شگار کیگ یوازیگ پاتیگ شو، په شگار کیگ یوازیگ دده د ستاینیگ تابلو ككگانیگ حگوؤندیگ ویگ. یوازیگ به ییگ آئینیگ ته کتل او چیگ کله به ییگ حگان ونه لید وارخطا به شو چیگ حگان تریگ ورک شوی، خو خبر نه و چیگ ائینه خو د دوزخونو دروازه ده او له آئینیگ خگخه اخوا تیگریگدل د اوهامو جهنم ته کوزیگدل و. قهرمان د اوهامو جهنم ته ولویگد، د لحظو په پتگ دام کیگ ككگیر شو او د زمانیگ په شمیگرنه کیگ أوب شو او هره شپه ورته یوه بیگ اغازه او بیگ پایانه خگیز شگكاریگده، بیا په دیگ سوچ کیگ أوب شو چیگ کهخگوک په دیگ پوهیگدلی چیگ خگشگتن ددوی روح اخلي نو هیگخگكله به ییگ د ژوند ارمان کؤی نه وای.

او په دیگ توككگه قهرمان د تجرید او تنهایي ژوریگ کندیگ ته پریگوته، خو یوازیگ احساس ییگ ورسره ملككگري کوله او دده د ذهن پر دیگوالو به ككگرحگیگده. دیگ کیگ ده ته دا درد پیدا شو چیگ زمانه بیا نه راككگرحگي او پرونی سهار بیا نه راغبر ككگیگإي.

یو وخت داسیگ هم راغی چیگ له قهرمان خگخه خپل سیوری ورک شو او هریگ خواته ییگ چیگ کتل خپل سیوری ییگ نه لیده او دیگ پیگشگیگ أیگر مظرب کؤ. بیا ییگ وویل: "اوس په کار دي چیگ زه لاؤ شم او هرومرو پیدا کؤمه خپل سیوری"، بیا ورته تشویش پیدا شو هسیگ نه چیگ زه خپله سیوری یم، داسیگ سیوری چیگ اصلي وجود ییگ ورک وي. بیا ورته په زؤه کیگ وهم پیدا کیگإي هسیگ نه چیگ پر کومه بله لاره تللی یم. هغه په دشگتو کیگ هم سوچونه کوي او د ازادة د مانا او مفهوم په لتگه کیگ دی.

دیگ کیگ خگلورم پؤاو ته ورداخلیگإي او "د دوزخ له درشل اخوا "کیسه پیلیگإي. قهرمان تر دیگ وروسته خوب هم په ارامه نه شو کولای او په خوب کیگ به أیگر زیات ویگریگده، یوه ورحگ له خوبه پاخگیگده، کگوري چیگ شگار کیگ پرته له ده خگخه هیگخگوک نه شته بیا به وهم اخیسته او له کگونکگسیو به ویگریگده. بیا ییگ د یو توپان یا جکؤ د راتلو خبر واوریگد او له دیگ جکؤ خگخه ییگ د قهر یو اواز هم واوریگد، په همدیگ وخت کیگ په جکؤ او توپان کیگ قهرمان ته ویل کیگإي چیگ تا ته مواإد خپل تگول وجود او هستة اختیار درکؤ، خو تا حگانته داسیگ نوم غوره کؤ چیگ تاویگ زه یم نوم میگ "زه "دی "مواإ" او

"تاسیګ " یوه پرده ده. دا پرده مو کؤله ورکه. مونإه تګولو ستا په "زه " کیګ کؤو حګان محوه. ته مغرور او متکبر شویګ تا د ازادة جذبیګ بندیګ کؤیګ، خو اوس هغه تګولیګ بل شانیګ خګیګریګ دي او نن حګانته "روحي اضطراب " وایي. اوس به د تر وإمیو پرشګته راحګي. بله ورحګ چیګ قهرمان له خوبه پاخګیګد، ائینیګ ته ییګ وکتل، حګان ییګ ونه پیګژانده خو د همدیګ ورحګیګ په ماشګام کیګ چیګ توره تیاره شوه، بیا یوه زؤه بوأة پیدا شوه، د تور لوکګي توریګ جامیګ ییګ اغوستیګ ویګ او د همغیګ هسکیګ مانګة پر لوري د قهرمان ملاقات ته لاؤه او قهرمان ته ییګ د تلو بلنه ورکؤه. خو قهرمان ورته وویل چیګ زه همدلته خوشګ یم. خو بوأة ورته وایي چیګ اوس په تا ناوخته شوی اوس زه تا حګان سره بیایم هغه حګای ته دیګ بیایم چیګ د حګان له جهنمه خلاص شیګ ،ګ کله چیګ قهرمان په حساب پوه شو چیګ خګوک له خپل قسمته تشګتیګدلی نه شي نو د خپلیګ هستة په ژور تل کیګ ییګ دا احساس وکؤ چیګ مطلق یوازیګ پاتیګ دی یوازیګ، نو بیا د توریګ مانګة له کنأوالو نه رارروان شو او له بوأة سره کومیګ نامعلومیګ خواته لاؤ.

تر ډیګ وروسته حګانحګانې شګامار به دویم خګرخ کیګ یو حګل بیا راستنیګږي.

"د ژوندون د چینیګ غاؤه په تورتم کیګ "د پنحګم پؤاو برخه ده چیګ په دیګ کیګ یو حکیم د انسان شخصیت تشریح کوي چیګ دی اصلاً خپل حګان نه ګګوري، بلکیګ خپل سیوری ګګوري او پر دیګ سیوري د حقیقت ګګومان کوي. تر دیګ وروسته له لریګ ملکه د یوه مسافر راتګګ ته انتظار ایستل کیګږي چیګ د ورک سمندر غاؤیګ کیسیګ او احوال ورته راوؤي.

"د نیمو شپو لاروی" د غار توریګ خولیګ ته ناست و او حګان ته ییګ وینا کوله چیګ أیګریګ مزلیګ میګ وکؤیګ خو لاره میګ پیدا نه کؤه، حګګکه ما سره چیګ خګوک د سفر ملګګری و، هغه یوازیګ د حګان په باب فکر کاوه او پر حګانحګانة اخته و. خو لاروی وروسته مجبوریګږي د حګانحګانة له ملګګري خپله لاره بیګله کؤي او د سبا په تمه منتظر کیګني تر خګو چیګ پسرلی په دنیا راشي. په داسیګ حال کیګ چیګ د بیګلتون شپه تورتم نه وه، لاروی له خپلیګ حګانحګانة "زه" نه راجلا شو. دیګ سره نو دی له زؤو ایرو راولاؤ شو، له خپل حګانه ییګ د خپل وجود یو زوؤ قالب وویست او دوریګ ییګ ګګوزار کؤ. بیا ییګ د اوشګګو

خگاخگکي روان شول، نو دیگ سره ییګ وویل اوس به نو د خوؤ په وچ بستر کیګ د اوبو أک رودونه روان شي. خو لا هم د شګار پر لوري د لاروي سفر ته أیګره لاره پاتیګ وه.

نو حګکه باید د تورتم ژور تل ته کشګته شي که د رنګا خګرک ولکګوي. لاروي تر اوإده مزله وروسته د تورتم په ژورتیا کیګ یوه کوچنۃ شانته رنګا ولیدله. لاروی بیا یو تور أنأ ته رسیګإي، هلته کګوري چیګ واؤه واؤه چینجیان د یوه بل پر حګان اخته وو، یو بل به ییګ خوؤ، په دیګ کیګ به یو غتګ شو، نور چینجیان به ییګ وخوؤل، بیا به تریګ ماهی جوؤ شو، مارماهی به شو او بیا به تریګ نهنکګ جوؤ شو، بیا به ییګ وزرونه او تیګره تیګره غاشګونه پیدا کؤل.

له واؤه چینجي به غر جوؤ شو. نور به په أنأ کیګ نه حګاییګده. دیګ کار به لاروي ته أیګریګ پو شګتنیګ پیدا کؤیګ خو لاروي چیګ به هر خګومره د رنګا لتګه کوله، رنګا به لریګ لریګ حګلیګدله.

لاروی بیا مزل کوي، جزیریګ او تګاپوکګان ییګ ولیدل، د هریګ زریګ زؤه کیګ ننوت، هره زره لکه یو بحر نامحدوده وه، خو ده ته په دیګ تګولو کیګ یو لوی حایل او مانع دا و چیګ دا حایل فقط د مانا او مفهوم نشتوالی و، دا داسیګ یو دیګوال و چیګ له تګول عالمه را چاپیګر و خو لاروی په اخره

کیگ یوه شو چیگ عالم او هستي واؤه بیگ معنی او بیگ مفهومه دي.
شپإم پؤاو د هغه شگار سفر دی چیگ تور شگامار وربانديگ ناست و. لاروی بیا په یوه تونل کیگ د رنگا په خگرک پسیگ روان شو او په دیگ نیت ییگ عجله کوله چیگ خگنکگه د شگار خلک خبر کؤي چیگ شگامار بیا راروان دی. بلاخره شگار ته ورسیگد او هلته ییگ یوه نازنینه پیگغله ولیده، چیگ شین بخن زوؤ کمیس ییگ اغوستی و. لاروي ییگ په سترکگو کیگ د خپل ورک سمندرغاؤه ولیده. پیگغلیگ ورته له خپل منکگي اوبه ورکؤیگ او هغه پریگ خپله تونده ماته کؤه. د شگار خلکو دیگ پیگغلیگ ته لیلیگ ویله. لاروی حگي هغه شگار ته چیگ د زؤه په سترکگو ؤوند و. کله چیگ شگار ته راحگي نو شگار کیگ چوپه چوپتیا ده، ماشومان نه کگرحگي، یوه سپین إیري ؤوند په ملا کؤوپ نه تپوس کوي، هغه ورته وایي چیگ دا هرخگه د واکمن په امر شوي. لاروی چیگ له اوإده سفره شگار ته راغلی و او په سمخگه کیگ ییگ ویگشگتان او نوکان أیگر لوی شوي وو او هم ییگ جامیگ په اوإده سفر کیگ أیگریگ خگیریگ خگیریگ شویگ ویگ او بدن ییگ تریگ شگکاریگده، نو په شگار کیگ په لیگوني مشهور شو او خلکو به مجنون باله.

رشگتیا هم په ؤندو کیگ دی یو بینا و چیگ نوم ییگ مجنون و. لاروي چیگ د شگار د خلکو ژوند ولید چیگ د قهرمان یا ستر پهلوان ستاینه کوي، یا پریگ خوشالي کوي نو ده پریگ خندل نو د شگار خلکو به ویل چیگ دا سؤی خو رشگتیا لیگونی او مجنون دی. نو ولیگ ییگ په زنحگیر نه تؤي، خو حگینو نورو به ویل چیگ لیگونی دی، خو د زنحگیر لیگونی نه دی او چاته ضرر نه رسوي، خو لاروي به خلکو ته خپل پیغام اوراوه که خگه هم له ماشومانو پرته لویانو ورته غوإ نه ایشگوده، ده به خلکو ته ویل: "دا عالم او هستي واؤه بیگ معنی ده بیگ مفهومه." د شگار ساده کگانو به لاروی حگوروه او ورته ویل به ییگ خبر نه ییگ لیلیگ خگه شوه؟ دیدار ته بیگ لاؤ شه! سره أولة سنباله شویگ ده، ستا لیلیگ په کیگ سینککگار کؤیگ ناسته ده، خو لاروي به ورته ویل چیگ لیلیگ زما په زؤه کیگ ناسته ده. یوه شپه لاروی د خرابات پر کوخگه برابر شو، تگنکگ تگکور جاري و، لاروی چیگ وردننه شو هغو ورته هر کلی وو ایه، لاروي ورته وویل چیگ تاسیگ تگپوسان او کگیدؤان یاست، هغه خگه چیگ باید شگکاره وي ولیگ په دیگ شگار کیگ پتگ دي او هغه خگه چیگ باید پتگ شي هغه په رنگا کیگ بیگ پردیگ کگرحگي. لاروی بیا مستانو سره خوندور سوال او حگواب

کوي. يو مست پو شگتنه کوي چيگ وليگ د جهان تگول فرمانداران له مستانو اًاريگإي؟ لاروی حگواب ورکوي حگکه چيگ ددوی په خبرو کيگ د راستة خطر وي. بيا لاروی مستانو ته وايي: "إلا راپاخگئ راولاؤ شئ، دديگ دشگتيگ وچ حگنکگلونه او بيگ ثمره ونيگ له منحگه يوسئ ريشيگ بيگ وباسئ، هغه مستان چيگ په تورتمخانو کيگ تؤلي هغه را ازاد کؤئ او کوم شگامار چيگ په کيگ ناست دی هغه تريگ رابهر کؤئ او بيا بيگ حلال کؤئ او وينه بيگ په ديگ دشگتو تويه کؤئ، حگکه طبيعت تاسو نه د شگامار قرباني غواؤي! مستانو د لاروي خبريگ د زؤه په غوإو واوريگديگ او د لومؤي حگل لپاره بيگ د خپليگ مستة په نشه کيگ يو نا اشنا مزه وموندله. دا د ازادة خوند او لذت و.

د مرکگي سيوری روان و، ژوندي سري ورپسيگ تلل. د شگار خلکو يو کالبوت پر اوإو ايشگی و، د خلکو سيوری تر دوی دمخه روان و، کله چيگ خلک هديريگ ته ورسيگدل نو ستر راهب د مؤي جنازه په أيگرو شگو الفاظو ترسره کؤه، بيا لاروی پاخگيگد او د مرکگ په باب بيگ وويل چيگ له مرکگ سره د نيگکة او بدةگ خگه پروا نه شته، دی له خيرا و شره ماورا دی، مرکگ د شگو او بدو نيستي ده. لاروی خلکو ته وايي چيگ نيکي او بدي په ديگ جهان کيگ موندل

کیګاِي نو باید چیګ مکافات او مجازات هم همدلته وي. بیا د شګار خلکو ته خطاب کوي که تاسیګ مؤه نه یاست او د ژوندون خګه شوق درسره وي نو دا مؤی لا خګه هیګر کؤئ او ژوندون پسیګ روان شئ، خو د شګار خلکو بیا هم لاروی چور لیګونی وباله او د ماشګام په خؤه کیګ د خپلو کورونو پر لوري روان شول، خو لاروی هلته یوازیګ پاتیګ و. خبریګ ییګ کولیګ، یوازیګ یو سپی هلته پاتیګ و او د ماشګام واِمیګ دا خبریګ د مشرق پر لوري وؤلیګ.

دا وخت د ؤندو شګار له خطر سره مخامخ و، خو لاروی د شګار تګولو خلکو پیګژندلو، حګینو لیګونی باله او بندي کول ییګ ضروري کګنګل خو حګینو نورو بیا ویل چیګ دا یو روحاني شخص دی او عادي شخص نه دی. یوه ورحګ لاروی د شګار په منحګ کیګ خلکو ته وینا کوي او د شګار تیګر برم یادوي او پوشګتنه کوي چیګ چا دا تباه کؤل؟ د شګار خندوقونو اودیګوالونو ته ضرورت نه شته، حګکه چیګ غلیم په بهر کیګ نه دی د شګار په داخل کیګ دی، دا پخوانی شګایسته شګار اوس په کنأوالو بدل شوی او شګامار په دغو کنأوالو کیګ پروت دی. بله ورحګ بیا شګاریانو ته خطاب کوي او وایي چیګ یو وخت ددیګ سیمیګ زمامداره د نوبهار الهه وه. هغیګ سره په دیګ شګار کیګ لویه

نیگکمرغي او خوشالي وه، خو تاسو اوس هغه هیگره کؤیگ او په اوهامو اخته شوي یاست. ایا تاسو نه کگورئ چیگ حگوانان، ماشومان، شگحگیگ او بوأاکگان مو په کومو رنحگو اخته دي؟ نو بیا ورته وایي چیگ غوإونه مو بیدار او ستر ککگیگ مو بینا کؤئ نو ددیگ علاج دادی چیگ تاسیگ د لیلیگ د پشگو خاورو ته سر کشگیگإدئ او سجده ورته وکؤئ، خو خلکلو به خندلیگ او ویل به ییگ دا سؤی رشگتیا مجنون دی.

د زمانیگ یو دفتر په ختمیگدو و، یوه ورحگ بیا لاروي د شگار منحگ کیگ خلکو ته خطاب وکؤ او ورته ییگ وویل چیگ ستاسو ستر واکدار بادار خو تور شگامار دی. دا شگامار وینو ته تإی دی او زؤه ییگ لکه سندان کلک دی. خگومره چیگ خوراک او خگشگاک کوي هغومره وإی او تإی کیگإي، خو دا بلا او شگامار ستاسو په خپله پر حگان مسلط کؤی او له بل حگایه نه دی راغلی، تر خگو چیگ دا شگامار په خپلو زؤونو کیگ مؤ نه کؤئ خلاصیگدی ورخگخه نه شئ.

په دیگ وخت کیگ ستر راهب چیگ د لاروي خبریگ واوریگدیگ نو ییگ وویل چیگ دا سؤی خو رشگتیا لیگونی دی حگکه دا رازونه خگوک ویلای شي. زه حیران یم چیگ ده دا رمز خگنککگه پیدا کؤی دی. راهب وویل چیگ دا

خبریګ ددیګ شګار د عالم نه دي دا د بل جهان اواز دی ، یوه دنیا په ؤنګګیګدو ده. د شګار خلک ورو ورو د مجنون په خبره پو هیګدل او یوه فرصت ته منتظر وو.

یوه ورحګ لیلیګ او مجنون د شګامار دربار ته لاؤل، همغه پیګغله چیګ د لاریګ پر سر به منګګي سره ناسته وه او تږو مسافرو ته به بیګ اوبه ورکولیګ، هغه د شګامار مانګة ته لاؤه، فرماندار لو مؤی خپل مخ مجنون ته واؤوه: زه خبر یم چیګ ته له بل حګایه راغلی بیګ او موإ پناه درکؤیګ ده،ګ د دیګ شګار خلک خپلو عقایدو پریګشګودو ته رابولیګ او واییګ چیګ د دیګ کګدایي کګریګ پیګغلیګ پرستش وکؤئ دا رشګتیا ده؟ لاروي ورته حګواب ورکؤ: ای فرمانداره ستا معبد لا نوی دی او دیګوالونه بیګ پاخه نه دي، ددیګ سیمیګ رشګتیني واکداره اصلاً د عشق او مینیګ الهه او رب النوع وو ، د هغو په واکمنة کیګ دلته خوشالي وه، مینه وه، خو اوس چیګ زه ګګورم هره خوا ریګګستان دی، د زؤه خونیګ ؤنګګیګ بنګګیګ دي او تور شګامار په کیګ ناست دی. زه اوس همدا حقیقت هر چاته بیانومه.

د واکدار وچولی تریو شو ، د غضب اور بیګ په سینه کیګ لمبه شو ، بیا بیګ وویل حګه پروا مه کؤه دا بیګ قدرته لیګونی دی. بیا بیګ لاروي ته وویل چیګ تا د شګار په

پیگغلو کیگ دا سوالککره خگنکگه غوره کؤیگ او زما د شگار خلک ییگ ولیگ سجدیگ ته رابولیگ، لاروی ورته وایي چیگ د شگار خلک خو د شگامار له وهمه أاریگإي که دا واهمه ختمه شي نو شگامار یو دم سقوط کوي. خو د بهار د رب النوع قوت په زؤونو کیگ پروت و. دا لیلیگ خو په یو وخت کیگ د نوبهار الهه وه او دا هغه وخت و چیگ واهمه پر خلکو حاکمه نه وه، کله چیگ خلکو د شگامار پرستش پیل کؤ، نو هغه بهر ته ووتله او د ورک مسافر لاره ییگ خگارله، خو دا مسافر اوس راستون شوی خو افسوس چیگ دلته ستر ککگیگ نا بینا دي او خگوک ییگ نه ویني. ای واکداره زه ستا په ویگره او أار کیگ ستا سقوط شگه وینم- شگه خبر شه، دا شور ما شور چیگ ته ییگ اوریگ دا به نور هم زیات شي. ستر واکمن چیگ دا خبریگ واوریگدیگ نو له مجنونه ورته أار پیدا شو. بیا ییگ په أیگر غضب پیگغلیگ ته غإ کؤ چیگ وایه ته خگوک ییگ؟ "زه خو زه یم! زه لیلیگ یم! زه د مینیگ رب النوع، الهه د نوبهار یم. "زه به له شگاره بهر هر ماشگام ناسته وم او د خپل مسافر لاره میگ خگارله. هغه زه پیگژندلم او لتگولم. خو خبر شه چیگ نور به کوم مسافر دلته سفر ونه کؤي، حگکه تگولیگ لاریگ بندیگ شوي او په حگوزانو پتگیگ شوي. خگو موده به تیگره نه وي ته به هم د خپل پلار نیکه په لار

روان شیگ، زه به بیا د بهار لاره خگارمه. فرماندار چیگ دا کگفتار واوریگد، نو أیگر په غصه او په لؤزه شو. ده فکر کاوه چیگ دا خبریگ ییگ کوم چیگرته اوریگدلي دي. واکدار بیگریگ او واهمیگ واخیست او وییگ ویل دا خو دواؤه لیگوني دي. زه ویگریگإم چیگ د دوی لیگونتوب ساري نه وي او د شگار نورو خلکو ته انتقال نه شي او بیا ییگ فوراً لاروی او لیلیگ له خپل درباره وشؤل. فکر ییگ وکؤ که مؤه یا زنداني ییگ کؤي نو شگار کیگ به شورش جوؤ شي، پیگغله بیگرته له شگاره ووتله او لاروی د شگار په کنأوالو کیگ د عالم په تماشه شو، د ابدي خگرخ وخت راغی، مجنون د شگار په ویگرانه کیگ د جهان فرماندار په مانگة کیگ دحگان تماشا کوله. لاروي ولیدل چیگ د شگار پیگغلیگ، حگوانان او کوچنیان پر بیگلابیگلو ناروغیو اخته دي او بیگ وخته مري، خو یوازیگ راهب أیگر عمر وکؤ خو هغه هم بلاخره خپل روح خپل نا اشنا خگشگتن ته تسلیم کؤ، معبد ورو ورو شؤیگده حگکه بل شگامار پرست پاتیگ نه و.

د راهب شاکگردان هم چیگرته لریگ لاؤل، د مانگة په دیگوالونو کیگ لوی چاودونه پیدا شول، اغزن بوتگي شنه شول او په پای کیگ شگایسته قصر ویجاؤ شو.

یو ازیـگ لاروی او فرماندار پاتیـگ وو، لاروی پـه ویگرانـه کیگ او فرماندار په خپله مانگة کیگ، هیگچا دلتـه کگذر نـه کاوه حگکه تگولیگ لاریگ بندیگ ویگ، یو ماشگام چیـگ تـوره تیـاره شـوه یـوه زؤه، مرمـوزه بـوأة راپیـدا شـوه د لـوکگي کمیس او پرتوکگ ییگ پر تن و، بوأة شگار تـه ننوتـه، بـوأةگ ته هر خگه په خپل سر خلاص شـول، دا بـوأة لاروي سره اشنا وه او هغـه پوهیگده چیـگ دا د خگـه لپـاره راغلیـگ ده، اوس پـه قصر کیگ دننه ده د بوأة او بادار په منحگ کیگ خگه خبریگ کیگـإي. خگـو شـیگبیگ وروسـته دواؤه د مانگـة لـه کنـأوالو راووتـل، بـوأة مخکیــگ او قهرمــان ییــگ تــر شــا روان وو. کومیـگ نامعلومیـگ خواتـه لاؤل، خـو مجنـون هلتـه یوازیـگ پاتیـگ و، د زمانیـگ دفتـر ورتـه لـه اغـازه تـر انجامـه پـروت و. موسمونه او فصلونه تلل راتلل، یـوه شـپه ییـگ کتـل چیـگ د افق په تورو لمنو کیگ رنگاکگانیگ راشگکاره شویگ، دی په رنگا پسیگ روان شو. أیگر مزل ییگ وکؤ د سیند غاؤیـگ تـه نإدیـگ شـو، د سـیند غاؤیـگ ابادیـگ ویـگ، هـره خـوا خوشالي وه، د پیگغلو او حگوانانو راز او نیـاز وو، مشـران پـه دیگـره کیـگ ناسـت وو، مرکیـگ ویـگ، مشـوریگ ویـگ، ماشـومان د سـیند پـر غـاؤه لوبیگـدل او هغـه نـا اشـنا پیگغلـه مسته خرامانه کگرحگیگدلـه، د وحشـي کگلونـو تـاج ییـگ پـر

سر پروت و ، د بهار د وإميګ په شان الوتله، لاروي د نيمو شپو
چيګ دا حال وليد بيګ اختياره په خندا شو حګکه پوه شو
چيګ يو حګل بيا د ستر قهرمان او پهلوان او د عشق او
مينيګ د شګکليګ رب النوعيګ، الهی داستان شروع شو
او يو حګل بيا د تور شګامار مار لويه او اوإده افسانه له سره
پيل شوه.

# د خوشال د قصايدو روح

> دا ليکنه له پېښوره خپرېدونکې د دانش خپرندويه ټولنې خپرنې ارګان الفت مجلې په پرله پسې (۲۲) ګڼه کې خپره شوې ده.

قصيده په پښتو نظم کې يو ځانګړی جلا فورم دی، چې اساساً له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلی دی، خو د قصيدې ځای په پښتو نظم کې دومره جوت او ټينګ دی، چې سړی فکر کوي بولله يا قصيده خپله کوم ځانګړی پښتو شعري فورم دی. له عربي ژبې څخه پښتو ته په راغليو شعري فورمونو کې تر (غزل) وروسته د قصيدې فورم زيات کارول کېږي، د پښتو په لاسته راغلې لرغونې شاعرۍ کې د ښکارندوی غوري او شيخ اسعد سوري پخې قصيدې ددې ادعا ښکارندوی دي. څه ناڅه په روښاني پېر او بيا تر هغه وروسته د پښتو په نوره کلاسيکه شاعرۍ کې د قصيدو دود ښه پالل شوی دی، په پښتو اوسنۍ معاصره شاعرۍ کې هم د قصيدې ويلو دود پال شوی او پالل کېږي ؛ خو که موږ په ټوليز ډول د پښتو شاعرۍ ټول بهير ته نظر وکړو او ټول شاعران د قصايدو د څرنګوالي او څومره والي له پلوه سره پرتله کړو ؛ نو د لوی خان (خوشال خان بابا ) ځای او مقام به په کې په ډېر جوت او ځلند ډول را تر سترګو شي.

خوشال بابا په لسګونو قصيدې ليکلي، چې زياته برخه يې تر موږه رارسېدلې ده. دا ټولې قصيدې د يو ژور سياسي، ټولنيز، عرفاني، اخلاقي او ملي فکر لېږدوونکې دي، چې هره يوه ځانګړې او جلا خوند لري او زموږ په ذهن کې يوه ځانګړې پېښه او موضوع روزي او تداعي کوي، خو ټولې يې د قصيدې له معمول او دوديز تعريف سره پوره پوره سمون نه خوري. د قصيدې دوديز تعريف دادی:

**هغه نظم، چې لومړی بيت يې مقفی وي او د نورو بيتونو د هرې دويمې مصرې قافيه يې د مقفی بيت د قافيې تابع وي، د بيتونو شمېر يې له (۱۵) څخه پيل بيا تر (۲۰۰) بيتونو هم زياتېدی شي، رديف په کې اختياري دی، خو قافيه په کې حتمي ده.** هره قصيده له معمول تعريف سره سم د مانا له پلوه پر دريو برخو وېشل کېږي:

۱- تشبيب يا تغزل، چې د قصيدې پيل ګڼل کېږي او معمولاً په کې تر اصلي مطلب دمخه د سريزې يا پيلامې په ډول د طبيعت د مناظرو ستاينه کېږي.

۲- اصلي مطلب، چې شاعر غواړي د خپل زړه خبره همدلته راوسپړي، خپل ممدوح توضيح، تشريح او توصيف کړي.

۳- د قصيدې(۳) برخه، هغه وروستۍ برخه ده، چې شاعر خپل ممدوح په ژوندانه کې سوکال، سرلوړی او بريمن غواړي

او په اخرت کې ورته د خدای(ج) له درباره د ښېنې، مغفرت او د جنتونو هیله کوي. که موږ د شیخ اسعد سوري:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار

او هم د ښکارندوی غوري بولله:

د پسرلي ښکلوونکي بیا کړل سینګارونه
بیا ولونل په غرونو کې لالونه

دواړو ته نظر وکړو؛ نو ګورو، چې لومړی د مانا له پلوه ویرنه او دویمه هم ستاینه-ویاړنه ده، چې دواړه د قصیدو له معمولو تعریفونو سره سمون لري، خو خوشال بابا لکه څرنګه چې غزل یې پښتون او ملتپال کړ او له دودیز حالته یې راوویست، دغسې یې قصیدې ته هم نوی رنګ او خوند ورکړ، د یوې ځانګړې پېښې یا شخص د تائید او توصیف له حالت نه یې راوویست، ټولنیز، سیاسي او عرفاني یې کړ. د پخوانیو قصیدو یوه ځانګړنه دا وه، چې د ټولو یا زیاترو بیتونو مانا یې له یوه بل سره په ارتباط کې وه. د مانا له پلوه هر بیت له بل څخه متاثرو، یانې دا چې د غزل په شان یې هر بیت پوره او خپلواکه مانا نه لرله، خو خوشال بابا دا دود هم مات کړ، کله چې د خوشال بابا ګڼې بوللې مطالعه کوو، نو د قصایدو د نوي رنګ او خوند ترڅنګ مو پرې د غزل مینه هم ماتېږي، سړی فکر کوي

يو اوږد غزل لولي، ځکه چې دده قصيدې داسې ځانګړنه لري، لکه د غزل په شان، چې هر بيت يې يوه مستقله مانا ښندي.

**اوس راځو د خوشال بابا د بوللو فکري يا مانيز اړخ ته:**

شعر پوهان (فکر) د (شعر روح) ګڼي، چې بې له هغه شعر ژوند نه شي کولای، بې فکره شعر داسې دی، لکه بې روحه جسم او جسم، چې هر څومره ښکلی وي، چې روح ونه لري، ژوند نه شي کولای، خو د فکر تر څنګ شعر پوهان د شعر پر ښکلا هم ډېر ټينګار کوي او هغه د شعر د بقا اساسي عنصر بولي. د شعر ښکلا په رنګينو او لطيفو کلمو، تخيل، عواطفو او د هغو په منظم او موزون استعمال تضمينېږي او تامينېږي.

ډېر شعر پوهان پر شعر باندې د زيات فکر بارونه د شعر ښکلا ته زيان رسوونکي ګڼي او وايي، چې دا کار د شعر (شعريت) له منځه وړي او کله چې د يوه شعر شعريت له منځه لاړ، هغه خپل هنري ارزښت له لاسه ورکوي او او پر تشو خبرو بدلېږي.

د افغانستان د يوه اديبوه او کره کتونکي کانديد اکاډيميسن محمد صديق روهي له نظره: په (شعر) کې (شعريت) دومره مهم دی، لکه په (سړي) کې (سړيتوب). لکه څنګه چې (سړيتوب) د سړي جوهر دی، دغسې (شعريت) هم د شعر جوهر دی، د روهي صاحب په نظر (د هر ښه فکر بيان شعر نه دی) د بېلګې په توګه هغه وايي: که يو څوک د هېواد پنځه کلن اقتصادي پلان په نظم

کړي، نو ایا هغه به ښه شعر وي؟ سره له دې چې ښه فکر دی، د روهي صاحب د نظر وروستۍ نتیجه دا ده، چې هر ښه فکر باید شعر ته تر ورداخلېدو وارد مخه ښه صیقل شي، د شعر له نورو تلازماتو (ښکلا) سره غاړه غړۍ شي او بیا شعر ته ورداخل شي. لنډه دا چې پوهانو د شعر پر ښکلا ییزو او فکري خواوو دواړو باندې په متوازنه توګه ټینګار کړی دی.

خوشال بابا د یو ادبپوه او شاعر په توګه د شعر د رغنده توکونو انډول ته ډېره پاملرنه کړې ده، په تېره بیا په خپلو غزلو کې، سره له دې چې په بوللو کې د فکري برخې وزن تر ښکلا ییزې هغې یو څه زیات دی او یوه وجه یې هم کېدی شي دا وي، چې دا فورم د ښکلا په انډول د فکر د انتقال لپاره زیاته وړتیا لري.

د خوشال بابا په بوللو کې د طبیعي پېښو انعکاس، ټولنیزې ناخوالې، سیاسي او پوځي پېښې، ملي او عرفاني مسایل، ځاني او کورنۍ پېښې، ستونزې او کشمکشونه او نور په لسګونو ډوله پېښې او مسایل بیان شوي دي، خو که دا ټول مسایل او پېښې سره پرتله او انډول کړو، نو د خوشال د ملتپالنې احساس او فکر به په کې تر ټولو زیات په نظر راشي، په حقیقت کې همدا ملتپالنه او ملت جوړونه د خوشال د قصایدو اساسي روح دی.

د خوشال په ټوله شاعرۍ، په تېره بیا په قصایدو کې ملتپالنه داسې حیثیت لري، لکه په (شمسي نظام) کې چې یې (لمر) لري. (لمر) د شمسي نظام چورلیز (محور) دی او د دې لمریز نظام نورې ټولې سیارې د همدې لمر پر محور راڅرخي، د خوشال په شاعرۍ او په همدې قصیدو کې هم، ملتپالنه او ملت جوړونه همدا حیثیت لري. د خوشال د قصایدو روح همدا ملتپالنه ده، خو نور ګڼ ټولنیز، عرفاني، اخلاقي او غنایي مسایل، چې په قصایدو کې راغلي بیا هم په یو نه یو ډول له ملتپالنې او ملت جوړونې سره ارتباط لري او پر همدې محور چورلي.

دلته به د خوشال بابا پر ځینو قصیدو او دهغو پر مانیزو خواوو لنډه رڼا واچوو:

د خوشال خان خټک په کلیاتو کې لومړۍ ثبت شوې قصیده داده:

ای چې خیال کړې په دنیا
دنیا څه ده بې وفا
که دې یو زمان زړه ښه کا
بیا دې ژر کا په ژړا
که رضا په قضا ورکړې

نــور خوشــال يــې پــه رښــتيا.

خوشال په دې (۱۲۳) بيتيزه قصيده کې دا نړۍ يوه فاني دنيا ګڼي، چې راحت په کې نه شته او د ده په نظر يوه ((دارالبلاد)) ده، چې هره يې د لايتناهي هوسونو يوه ټولګه ده، چې هيڅ خړوب او پوره کېدنه نه لري. خوشال په دې قصيده کې د سليمان(ع)، بهرام، جمشيد، ساماميانو، عباسيانو، غزنويانو، سلجوقيانو، دارا، سکندر او نورو نړيوالو شخصيتونو نمونه اخلي، چې يو وخت يې ښه شان او شوکت و، خو د زماني د جبر قانون، له مخې لرې کړل. د خوشال دا قصيده له اخلاقي نصيحتونو او عرفاني ورمونو ډکه ده او په پای کې لوستونکي ته دا نتيجه ورکوي، چې ازل او تقدير ته ورتسليم شي او څه چې په قضا کې ليکل شوي، د بدلون وړ نه دي او نېکمرغه انسان هماغه دی، چې پر قضا باور لري. د (قضا) او (قدر) مسله په اسلامي فقه کې يوه پېچلې مسئله ده، خو خوشال بابا اسلامي شرعې ته د يو ژمن شخص په توګه پر دې باور دی او دده په نظر خوشال او نېکمرغه انسان هماغه دی، چې خپل برخليک له (قضا) سره تړلی وګڼي، پر (قضا) باور د انسان د روحي تسکين لپاره داسې يوه اساسي سرچينه ده، چې هېڅ بله مرجع يې بديل کېدلای نه شي.

خوشال د (پوه او ناپوه) ترنامه لاندې په خپله یوه بله اتلس بیتیزه قصیده کې، د پوهې او بصیرت ارزښتمندۍ ته اشاره کوي، پوه او ناپوه شخصیتونه سره پرتله کوي، خوشال په دې بولله کې لوستونکي ته دا ثمره او نتیجه وړاندې کوي، چې (ناپوهي) د انسان لپاره مړینه، ان تر هغې هم بدتره ده. دی په خپله قصیده کې په ډېر ظریفانه ډول د عیسی(ع) معجزې ته اشاره کوي، چې خدای(ج) عیسی(ع) ته دومره واک و ځواک ورکړی و، چې پخپله امسا به یې مړي راژوندي کول، خوشال بابا وایي، چې عیسی(ع) خو ډېر مړي راژوندي کړل، خو ددې مثال مور نه دی لیدلی، چې کوم (ناپوه) یا نادان یې (عالم) کړی وي. په دې قصیده کې خوشال بابا په ټولنه کې د پوهې ضرورت او اهمیت په ګوته کوي او دا ګڼي، چې پوهه ټولنې ته د نوش دارو یا ((آب حیات)) ارزښت لري او ناپوهي د مرګ معادله او یا هم تر هغه بدتره ده:

که دروغ کړي که رښتیا
هر څه ښه دي د دانا
مړه یې پاخول له ګوره
نابینا یې کړل بینا

یــو نــادان یـــې دانـــا نـــه کـــړ
پـــه درســـت عمـــر مســـیحا.

لکه څنګه چې پوهېږو ، انسان يو ټولنيز موجود دی او څه چې په ټولنه کې پېښېږي، له هغو څخه متاثر کېږي، شاعر بيا د يوه حساس انسان په توګه تر هر چا زيات د ټولنې ناخوالو ته متوجه وي او لـه هغـو څخـه اغېـزمن کېـږي. پـر (۱۰۹۷هــ ق) کـال د پښـتونخوا پـر زيـاترو سيمو ، يوه لويـه وبا خوره شوه، لومړی وچکالي راغله، بيا ورپسې قحطي راغله، چې وروسته ورپسې د وبا ناروغي خوره شوه او په زرګونو خلک يې تباه کړل، پـه دې نـاروغۍ کـې د خوشـال يـو زوی (بخـت نـاک) او د هغـه مـور هـم وفات شول او همدارنګه د خوشال يو لسمی، چې د قـرآن کـريم حـافظ هـم و ، د دې نـاروغۍ لـه کبلـه د يـوه لېـوني شـوي سـپي د داړلو له کبله ومړ، دا يوه ډېره دردونکې غميزه وه، چې لـه دکنـه تر کابله ټوله سيمه يې وځپله، خوشال بابا همدا پېښـه پـه (۲۳) بيتيـزه قصيده کـې پـه ډېـر درد او سوز رانغـاړلې او پـه همـدې قصيده کې يې خوندي کړې ده:

د غـــــــواص د کـــــــال وبـــــــا
خـــــدای یـــــې مـــــه راولـــــه بیـــــا
اکوړخېـــل مـــې پـــه کـــې ومـــړل

لوی هلک مرد و نسا
په لکونو عالم ومړ
چې ښارونه شول صحرا
کال حصغ شو وبا لاړه
هم عسرت کړه راته شا.

(غواص) د ابجد په حساب (۱۰۹۷هـ ق) کال کېږي او (حصغ) (۱۰۹۸) کال کېږي، یانې دې وبا یو کال دوام کړی و.

خوشال د خپلو ګڼو نورو ځانګړنو ترڅنګ دا ځانګړنه هم لري، چې دی یو ښه بشرپوه او ټبرپوه هم و، انسان پېژندنه ډېره سخته ده، د انسان د پېژندنې لپاره د هغه علمي، ټولنیز چاپېریالیز شالید ډېر مهم دی، خو خوشال بابا د دې ځانګړنو ترڅنګ د انسان د شخصیت په پېژندنه کې د هغه ارثیت یا اصل او کورنی عنصر ډېر مهم ګڼي، سره له دې چې ځینې بشرپوهان د انسان په وده او د شخصیت په ټاکنه کې محیط یا چاپېریال اساسي عنصر ګڼي، ارثیت ته ډېر اهمیت نه ورکوي، خو ځینې اروا پوهان بیا په دې نظر دي، چې د انسان د شخصیت وده د مور په رحم کې د هغه د نطفې له تشکل سره سمه پیلېږي او د مور او پلار جنتیک، اروایي او نور ټولنیز خصوصیتونه مستقیماً د هغوی اولادونو ته انتقالېږي.

خوشال بابا وايي: د هغه چا چې ذات خطا وي يا كمذات وي، له هغوی سره باید دوستي ونه شي.

چې يو ځل ښېګڼه ويني له چا
په يوه يې شل بدې كړه تر شا
له كمذات سره ياري اشنايي مه كړه
له كمذاته به بيا نه مومي وفا
چې د سپي په پيو لوی كا څوک ورغومی
لكه سپی هسې ورغومی كا غپا
په ويل ښېيل به هېڅكله ښه نه شي
چې بدبخت له موره پلاره شي پيدا.

خوشال په خپلو قصايدو كې د انسان پر ذاتي پېژندنې سربېره، ګڼو عرفاني، شرعي او نورو مسايلو ته اشاره كړې او هغه يې په خپلو بوللو كې رانغاړلي دي، خوشال د دنيا بې وفايي په خپلو قصيدو كې ځای ځای غندلې ده:

زړه سفر له دې دنيا
په تحقيق دی په رښتيا
كه څه زر كاله پايېږي

هــــم دې نــــه ويــــنم احيـــا
د خوشـــال ژونـدون پــه خـداى دى
نــــه شـــــهباز ده نــــه يحيــــا.

خوشـال د اسـلامي شـرعي لارښـوونو د يـوه پلـوي شـخص پـه توګه خپل مـذهبي احساسات پـه څرګندو الفـاظو، قصـايدو تـه ورداخل کړي دي، وايي:

دا همـــــه واړه د شـــــرعې خــــد متګار دي
محتســب، قاضــي، مفتــي، مـلا خطيـب
پـه جهـان کـې بـل رقيـب د شـرعې نـه شـته
کـه رقيـب دى يـو شـيطان يـې دى رقيـب
رنــځ، زحمـت دې خـداى ور نــه کانـدي
خوشــــــــــــــــــــــــــــــاله!
ګڼــه کـــړه دارو د شـــرعې پــــه طبيـــب.

خوشـال د اسـلامي شـرعې ترڅنـګ ګـڼ نـور نصـيحتونه او پندونه هم په خپلو قصيدو کې ځاى کړي او د پيغمبر حضرت محمد(ص) په ستاينه کې يې هم يوه (۱۹) بيتيزه قصيده ويلې ده. هغه د خپلو نصيحتونو په لړ کې وايي:

درتــه وښــيم کيميــا د ســعادت
لــه بــدانو ســره مــه کــوه صــحبت
د نمانځــه تــر قضــا ګرانــه دا قضــا ده
چــې قضــا شــي د څلــورو مصــلحت
چې جامه يې پاتې نه شي مرده شوی ته
خدايه ! ورکړې و خوشال هسې رحلت.

خان زموږ د پيغمبر حضرت محمد (ص) د ستاينې په باب وايي:

د خدای عرفان چې وشو په عرفان د محمد
پــاک دی محمــد پــاک دی ســبحان د محمــد
ډېــر خلــک پيــدا دي انبيــا کــه اوليــا دي
نــه شــته پــه خلقــت کــې پــه بــل شــان د محمــد
دا جهــان هغــه جهــان کــه واړه ســره يــو کــړې
لا تــر دا نــه لــوی دی بــل جهــان د محمــد.

د خوشال په بوللو کې د ګڼو افاقي مفاهيمو تر څنګ له خپلو زامنو بېزاري، ګڼ کورني مسايل، د ځان پېژندګلوي او ځينې

نور ذاتي مسايل هم ځای شوي دي، خو د خوشال د قصايدو
درنه مانيزه برخه هماغه د ده او دده د ملګرو د سياسي، پوځي او
ملي مبارزو نچوړ دی، چې ببلا ببلو قصيدو ته يې لاره پيدا
کړې او په هغو کې انځور شوي دي.

ددې قصيدو له جملې څخه يوه هم (له پښتون نه ګيله)
نومېږي، چې ټول (شپږ څلوېښت) بيته لري او په دې مطلع
پيلېږي:

بيا له کومه راپيدا شو دا بهار
چې په هر لوري يې ملک کړ يو ګلزار

دا قصيده د دوديزو قصيدو په شان لومړی د طبيعت په
ستاينه پيلېږي، بيا وروسته اصلي موضوعګانې راسپړي او د
هغو څرګندونه کوي:

پښتنو زلميو بيا لاسونه سره کړل
لکه باز منګولې سرې کا په خپل ښکار
سپينې تورې يې ګلګونې کړې په وينو
په اهار کې شګفته شو لاله زار
ايمل خان دريا خان دواړه مرګ يې مه وای
هېڅ تقصير دواړو، ونه کړ وار په وار

د خیبـر دره یـې سـره کړلـه پـه وینـو
پـه کړپـه یـې هـم روان کـړ دنـدو کـار.

خوشال په دې قصیده کې د خیبر په دره کې د تاترې د تاریخي جګړې، چې ځلو ښت زره مغول په کې تباه شول، انځور کښلی او همدا رنګه د (کړپې) جګړه، چې پښتنو توریالیو په کې خپله اتلولي او مېړانه څرګنده کړه. دغه راز په دې قصیده کې د تاترې پـر جنـګ سـربېره، د (دوابـه)، (د نوښـار د کـوټ)، (ګنـداب)، (خاپښ) او نورو جنګونو یادونه شوې او د هغو د اتلانو یادون په کې راغلی دی، دا قصیده په حقیقت کې یوه حماسه او ویاړنه ده، چې خوشـال پکـې د خپـل ولـس او خپلو اتلانـو د جنګونـو یادونـه او ستاینه کوي او ددې ستاینو ترڅنګ د پښـتنو ځینو نیمګړتیـاوو تـه د انتقـاد پـه سترګه ګوري او د هغـوی یادونـه کوي:

اول جنـــګ د لـــوړې شـــا د تهتـــرو و
چـې ځلو ښـت زره مغـول شـول تـار پـه تـار
خوینـدې لونـه یـې پـه بنـد د پښـتنو شـوې
اس اوښـــان هاتیـــان ولجـــه کتـــار کتـــار
دویـم جنـګ میرحسـیني و پـه دو آب کـې

چې يې وتکېده سر لکه د مار
بيا له پسه د نوښار کوټ جنګ و
چې مې وکېښ تر مغولو خپل خمار
بيا له پسه جسونت سنګه، شجاعت خان و
چې ايمل يې په ګنداب ويوست د مار
شپږم جنګ مکرم خان شمشېر خان دواړه
چې ايمل کړل په خاپښ کې تار په تار
چې زما په ياد دي لوی جنګونه دادي
د هلکو په هر لوري نه شته شمار.

په دې قصيده کې خوشال د پښتنو د اتلوليو تر څنګ د اورنګزېب د مکر و فريب، ظلم او ستم انځور هم کښلی دی او وايي، چې له ډېر ظلم، ستم او خصومت څخه يې خپل پلار هم بندي کړی و. خوشال خان په دې قصيده کې د پښتنو نيمګړتياوو ته هم ګوته نيسي او د خلاصون لارې چارې هم په ګوته کوي:

په داسې وخت چې وخت د نام و ننګ دی
دا بې ننګه پښتانه کا څه رفتار

پښتانه چې نور څه فکر کا ناپوه دي
بې د توري خلاصی نه شته په بل کار
تر مغولو پښتانه په توره ښه دي
که په پوهه پښتانه وای څه هوښیار
اولسونه چې سند وبله وکا
بادشاهان ورته سجود کاندي اختیار
همېشه به په جهان کې ژوندون نه وي
د خوشال خټک به پاتې شي یادګار.

خوشال د ټولنیزو او سیاسي مسایلو ترڅنګ د شعر په باب هم څو قصیدې لیکلې او دا چې شعر په کوم حالت کې و او کوم ته یې راورساوه، په دې باب یې څرګندونې کړي. لومړۍ قصیده یې (**۲۵**) بیتونه لري او د ځینو مطرح شاعرانو او د هغو د ادبي موقف یادونه هم په کې شوې ده:

په پښتو شعر چې ما علم بلند کړ
د خبرو ملک مې فتح په سمند کړ
مدعي د توري شپې اوراورکې و
د سهیل غوندې مې ځان باندې څرګند کړ

د میرزا دېوان مې ومانده په ګوډې
مسخره مې ارزاني خپشکي زمند کړ
دروېزه مې له مخزنه سره ونغړ
پیر روښان مې یاوه ګوی سره مانند کړ
که دولت و، که واصل و، که دا نور وو
په خبرو مې د هر یوه ریشخند کړ
قتلمې مې ورته سازې کړې د قندو
د اوربشو په ډوډیو چې چا شخوند کړ
په تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په معنی مې د شیراز او د خجند کړ.

خوشال د شعر په باب په خپله دویمه قصیده کې، چې (۱۳۸) بیتونه لري، نه یوازې په پښتو شعر کې د خپل دریځ او خدمت په باب خبرې کوي، بلکې د هغې بلې قصیدې په شان د نورو شاعرانو د موقف او د نورو ژبو د شاعرانو یادونه هم کوي، دغه راز خوشال په دې قصیده کې د شعر د ماهیت، تعریف او ارزښتمندۍ په باب هم خورا تفصیلي څرګندونې کړې دي او دا قصیده په حقیقت کې د شعر پوهنې په برخه کې خپله د یوه لوی شاعر یو ښه تېزس او لارښود ګڼل کېږي. د شعر په برخه کې دا قصیده ځکه زیات ارزښت لري، چې خپله د یوه لوی شاعر او

يوه لوی ادبپوه او شعر پوه له خوا ليکل شوې او وړاندې شوې ده:

زه د شعر په کار هيڅ نه يم خوشال
ولې خدای مې کړ په غاړه دا مقال
نه په فکر نه په ذکر رابرسېر شي
ناګهان لکه اوره د پشکال
چې د شعر فکر ورشي په مجلس کې
نور عالم خلا هوس کا دی ملال
شعر کار د هر فاسق د فاجر نه دی
نه د هر يوه وړ سترګي د کنګال
د هغه شاعر دانې وشه په ژبه
چې د شعر دردانې پلوري په مال.

که مورږ د خوشال د قصيدو معنوي اړخونه تحليل او تجزيه کړو، نو دا خبره به راته لا ښه څرګنده شي، چې دا قصيدې په حقيقت کې د مانا (کانونه) دي، چې ببلا ببل او رنګارنګ غمي په کې تر سترګو کېږي، د خوشال د قصايدو څېړنه خورا زيات کار، کتاب او کتابونه غواړي، پر يوه قصيده يې هم کېدی شي کتاب او کتابونه وليکل شي، خو که په لنډيز سره د خوشال د

قصیدو مانیزو خواوو ته اشاره کوو ، نو ویلای شو چې په دې قصیدو کې عرفاني، ټولنیز، سیاسي، پوځي، ذاتي، اروایي، دیني او نور رنګارنګ مسایل تحلیل شوي او مطرح شوي او لوستونکي ته یوه مثبته نتیجه په مخ کې ایښودل شوې ده. د خوشال د قلم او فکر قوت او مهارت په دې کې دی، چې ډېره لویه موضوع یې په ډېرو لنډو او کمو الفاظو کې خلاصه کړې او لوستونکي ته یې وړاندې کړې ده، یانې دا چې د موضوع کوچ او غوړ یې لوستونکي ته وړاندې کړي دي. خوشال ته لوی رب داسې یو لوی او خارق العاده استعداد ورکړی و، چې ((بحر یې په کوزه کې را ایسارولای شو)).

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۲ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ د نیازیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۲ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې ببړنۍ لویې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، د دې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیاد جرګې د غړو له خوا د ببړنۍ لویې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو. استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا د دې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول. استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا

کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو. ملګرو ملتونو (UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده در وسپارو، خو استاد یون و نه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده و منله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي. استاد یون پر ۱۳۸۵ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکیکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنیز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راډیويي او ټلویزیوني مرکو کې یې د واقعیتونو او حقایقو د څرګندیدو له امله د خلکو په زړونو کې ځای نیولی دی. که څه هم ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختي مخالفین دي. د هغه ملي او

ګټــورو نظریــاتو تــه هــم غلــط رنــګ او تعبیــر ورکــوي، دا ډول اشـخاص، چې اکثـره یې زورواکي او د سیاسـي ډلـو ټپلو غـړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو تـه خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفـي غبرګونونـه دواړه راپـارولي دي، منفـي غبرګونونـه اکثـره وخـت د هغـو اشخاصـو او ډلـو لـه خـوا وي، چـې پـه تېـر کـړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونـه یې مطرح کړي دي.

مثبـت غبرګونونـه اکثـره د ولـس د مشـرانو، روښـنفکرانو او نـورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون پـه دغسـې سـختو اغزنو او تنګو شـرایطو کـې بیـا هـم خپـل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کـار تـه دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس پـه مسلسـل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسـې پـرې په منظم ډول کار شوی، او ډل شوي او دادی ستاسو مخې ته ایښـودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کـار نـه دی. استاد یـون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکـار

او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) او(د پښتني فرهنګ د ودې پراختیا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو لیکوالو پـه لسګونو اثار، ایډیټ او چاپ کړي دي. دغه راز یې په سلګونو کورنیو مشاعرو، ادبي غونډو او سیمینارونو کې ونډه اخیستې ده، خپله یې هم پـه لسګونو مشاعرې، سیمینارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.
سربېره پر دې، په یو زیات شمېر، ملي او نړیوالو کنفرانسونو کې یې پـه ښـه ډول د خپـل هېـواد استازي کـړې ده. دلتـه بـه یـې د اثـارو یادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړۍ شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دویمه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
|---|---|---|
| • هیلې | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • نیمګړي ارمانونه | د حیران شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا یاد | د سیمینار د لیکنو ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

- د استاد الفت نثري کلیات    د استاد الفت نثرونه    دربیم ۱۳۸۷
- سیندونه هم مري    د اسحق ننګیال شعري منتخبات    دویم ۱۳۸۷

## ج- ژباړنې:

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  د پوهنوال روستارتره کي اثر    دویم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
  د نینسي دوپرې اثر    دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر    دویم ۱۳۸۷

## د - یونلیکنې:

- د اماراتو سفر    د اماراتو یونلیک    دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی    د اروپا یونلیک    لومړی ۱۳۸۷
- د پېنټاګون ترڅنډو    د امریکا یونلیک    لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمد ګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه    دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری    دویم ۱۳۸۷
- د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود    دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه    دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت    شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل    دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې    دویم ۱۳۸۷
- ببړنۍ لویه جرګه ولسواکي او زورواکي    دویم ۱۳۸۷

- اندیال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- د کتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلیچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنۍ سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای(ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته د نور زغم او اوسېلې هیله لرم.

په درناوي

وفاالرحمن وفا

کابل-افغانستان

